


**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب د پراختيا، د ښوونکي د روزني او د ساينس مرکز معينيت

د تعليمي نصاب د پراختيا لوی رياست

# د ښوونکي لارښود

# پښتو

## د پنځم ټولګي لپاره



د چاپ کال : ۱۳۹۵ هـ. ش

unicef

د هر ماشوم لپاره

برای هر طفل






د پوهنې وزارت

د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونکو د روزنې معينيت

د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تألیف لوی رياست

# پنځم ټولګی

## د پښتو ژبې د ښوونکي د تدريس لارښود

د چاپ کال: ۱۳۹۵ هـ. ش

## مؤلفان:

ـ د سرمؤلف مرستیال محمد سهراب دیدار

ـ مؤلف محمد عزیز حسین خیل

- د مؤلف مرستیال نصیر احمد امرخیل

## د ژبې ایډیټور:

ـ مؤلف محمد قدوس ذکوخیل

## دیني، سیاسي او کلتوري کمیټه:

ـ حبیب الله راحل د تعلیمي نصاب په ریاست کې د پوهنې وزارت سلاکار

ـ د سرمؤلف مرستیال گل اقا شایق د اسلامیاتو د دیپارتمنت غړی

## د څارنې کمیټه:

ـ دوکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معین.

ـ دوکتور شیرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې رئیس.

ـ دکتور محمد یوسف نیازی د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تألیف د لوی ریاست سرپرست.

## طرح او ډیزاین:

- صفت الله مومند
- صدرالدین ابراهیم خیل



## ملي سرود

| | |
|---|---|
| دا وطـــن افغانـــستـان دی | دا عـــزت د هـــر افغـــان دی |
| کـور د سـولې کـور د تـورې | هـــر بچـی یــې قهرمـــان دی |
| دا وطـن د ټولـو کـور دی | د بلوڅـــــــو د ازبکـــــــو |
| د پــــښتـــون او هـــزاره وو | د ترکمنـــــــو د تاجکـــــــو |
| ورسـره عــرب، ګوجــر دي | پامېـــــریان، نورستانیـــــان |
| براهــوي دي، قزلبــاش دي | هـم ایمـــاق، هـم پـشه یـان |
| دا هیـــواد بــه تـل ځلیـږي | لکــه لمــر پــر شــنه آسمــان |
| پـه سینـه کـې د آسیـا بـه | لکـــــه زړه وي جـــــاویدان |
| نـوم د حـق مـودی رهبـــر | وایــو الله اکبــر وایــو الله اکبــر |

# د پوهنې د وزیر پیغام

د لوی خدایﷻ ډېر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم کې پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ. ډېر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکی دی او د رحمت، لارښوونې او روښنايي پیغام راوړونکی.

ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.

درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تألیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.

دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تألیف شوی دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم یې چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړیږي او په هغوی کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښايي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.

درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوي موخې ترلاسه کړي. ښوونکی د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکی دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې هڅه اوهاند خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.

د هیواد د زده کړې د نظام برۍ د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.

لازمه بولم چې له ټولو پوهو مولفینو او د پوهنې د وزارت له اداري او فني کارکوونکو څخه چې د دغه کتاب په چمتو کولو کې یې زیار ایستلی او له ټولو ملي او نړیوالو بنسټونو څخه چې د درسي کتابونو د چاپ او ویش په برخه کې یې مرسته کړې، مننه وکړم.

په پای کې له لوی خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

**د پوهنې وزیر**

دوکتور اسدالله حنیف بلخي

# ليکلړ

# له ښوونکو سره یوځوخبرې

**درنو ښوونکو!**

د ښوونکي دغه لارښود هغه مرستندوی کتاب دی چې د پنځم ټولګي د پښتو درسي کتاب د ښه تدریس ا و لارښوونې لپاره مرسته کولای شي.

دغه مرستندوی لارښود کتاب څکه دښوونکو لپاره لیکل کیږي چې په لومړي ګام کې په درسي کتاب باندې د بیا کتنې په اړتیا باندې پوه شي او دغه راز په درسي کتاب کې د انځورونو، د لوست د هڅوونکو پوښتنو او فعالیتونو په موخو او همدغو موخو ته د رسیدو لپاره د تدریس په میتودونو او لارو چارو لاښه وپوهیږي او د لوست ورکولو په برخه کې به د یو مرستندوی کتاب په توګه ترې کار واخلي.

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف د لوی ریاست په تشکیل کې د ریسرچ ریاست له لومړي ټولګي څخه ترشپږم ټولګي پورې له اصولوسره سم له زده کوونکو، ښوونکو، سرمعلمینو، مدیرانو او د زده کوونکو له اولیاوو څخه د درسي کتابونو د بیا کتنې لپاره نظرونه راټول کړل، هغه یې وځیړل او اړوند څانګو ته یې وسپارل. د پښتو ژبې مؤلفینو د پښتو درسي کتاب په هکله نوموړې نظرونه په دقت سره مطالعه کړل،کوم چې د درسي کتابونو د سمون لپاره سم وو، هغه یې را واخیستل او خپل نظرونه یې هم ورسره یوځای کړل اوله لومړي ټولګي څخه ترشپږم ټولګي پورې یې په درسي کتابونو باندې نوی نظر وکړ.

د پنځم ټولګي دغه موجوده کتاب چې اوس تدریس کیږي، د ښه تدریس په خاطر یې د ښوونکو لپاره دغه لارښود کتاب تألیف شوی دی چې ښوونکي ترې کار واخلي.

په دغه لارښود کتاب کې بیلابیلو موخو ته د زده کوونکو د رسیدو لپاره لارې چارې په ګوته شوي او د هر لوست د تدریس درسي ساعتونه هم پکې ښودل شوي اوخبرې پرې شوي دي.

ښه به وي چې په دې لارښود کتاب کې د بیلابیلو برخو تر روښانولو د مخه د معلم محورۍ او د فعالې زده کړې په هکله لنډې خبرې وکړو.

## د معلم محورۍ زده کړه

زموږ په هیواد کې پخوا د معلم محورۍ د زده کړې په چوکاټ کې زده کړه کیدله. د زده کړې ټول فعالیتونه به ښوونکي سرته رسول او زده کوونکو به یوازې د لیدونکو او اوریدونکو دنده سرته رسوله. په دغه ډول زده کړه کې به د فعالیتونو د سرته رسولو ټول فشار په ښوونکي و.

په ټولګي کې به ترې لږ شمیر با استعداده زده کوونکوګټه پورته کوله، د تدریس په دغه ډول زده کړه کې زیاتو زده کوونکو څکه ګټه نشوه اخیستلای او له زده کړو څخه وروسته پاتې کیدل چې په فعالیتونوکې ورته برخه نه ورکول کیده. په دې ډول زده کړه کې زده کوونکو په پوهنیزه، مهارتي او ذهنیتي برخه کې کافي ونډه نه درلوده.

د ساینس او تکنالوژۍ د زیات انکشاف او پرمختګ لپاره اړینه وه چې د ښوونې او روزنې پوهانو په درسي نصاب او د تدریس په اصولوکې داسې لارې چارې ولټولې چې زده کوونکي وکولای شي د زده کړې په پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي برخوکې فعاله برخه او په ژوند کې ترې ګټه واخلي.

## فعاله او مشارکتي زده کړه

کله چې د ښوونې او روزنې پوهان د معلم محوری د زده کړې په چوکاټ کې په نیمګړتیاوو پوه او پـه دې فکرکې شول چې باید داسې فعاله او مشارکتي زده کړه رامنځته شي چې په هغې کې ښوونکي د لارښود، څارونکي او فعال ګډون کوونکي حیثیت ولري او زده کوونکي په خپله په لوست کـې فعالـه او عملـي برخـه ولـري چـې زده کوونکي وکړای شي د زده کړې په بهیر کې خپله دانشې، مهارتي او ذهنيتي پوهه پیاوړې کړي.

په دې ډول زده کړه کې ښوونکي یوازې زده کوونکي څاري او له زده کوونکو سره په سـتونزو کـې مرسـته کوي. په دې ډول زده کړه کې زده کوونکي په خپله کارکوي، لارښوونو ته ژوره پاملرنه کوي او زده کوونکوته په ټولو فعالیتونو کې ونډه ورکول کیږي.

په دې ډول فعالې او مشارکتي زده کړه کې ښوونکي د هر لو ست موخه په پـام کـې نیـسي او زده کـوونکي نوموړې موخې ته د هغو لارو چارو پواسطه ځان رسوي، کومې چې په درسي او لارښود کتاب کې ورته لیکل شوي دي. د درسي کتاب د هرلوست د موخو د زده کړې لپاره لازمه ده چې له بیلابیلو میتودونو څخه کار واخیستل شـي چې د همدې لارښود کتاب د لوستونو په برخه کې ترې کار اخیستل شوی دی.

## د میتودونو ارزښت

په فعال تدریس کې د لوستونو د تدریس په برخه کې بیلابیـل میتودونـه پـه ګوتـه شـوي دي چـې د درسـي مضمونونو او شرایطو په پام کې نیولوسره توپیر لري. موږ په دې لارښودکتاب کې هغو فعالیتونو تـه اشـاره کـړې ده چې د ژبې په زده کړه مهم رول لري. موږ یو شمیر میتودونه په لنډ ډول لیکلي دي، کیدای شي د کوم میتـود عملـي کول د زده کوونکو د شمیر د زیاتوالي له امله ستونزې ولري، ښوونکی کولای شي له هغه څخه تیر شي او کوم بـل میتود څخه چې په نظریې ښه ښکاري، وکاروي.

د ژبې د زده کړې ټول میتودونه په خپل ځای د ژبې د زده کړې په برخه کې د زده کوونکو لپاره ګټه لـري، لاهم په دې برخه کې څیړنې روانې دي او د وخت په تیریدو سره په تعلیمي نصاب کې نوي بدلونونه رامنځته کیږي.

د ژبو په درسي کتابونو کې پوهان دې ټکـي تـه متـوجې شـول چـې بایـد زده کـوونکي د ژبـې د زده کـړې مهارتونه، لکه: غوږ نیول، لیدل، اورېدل، لوستل، لیکل او خبرې کـول پـه داسـې ډول سـرته ورسـوي چـې ټـول زده کوونکي پکې برخه واخلي. په مشارکتي زده کړه کې ارزښتونه دادي چې زده کوونکي لیـدلو، اوریـدلو، غوږنیولـو، لوست ویلو، لیکلو او خبروکولو ته هڅول کیږي او په دې برخه کې لـه یوکـسیز، دوه کـسیز، ډلـه ییـز، د سـوال او ځواب له میتودونو څخه کار واخلي.

د زده کړې په دې سیستم کې د زده کوونکو ذهن وده او انکشاف کوي، په ذهنیت کې یې بدلونونه رامنځته کیږي، د درک او تفکر قوه یـې لـوړیږي، پـه دې زده کـړه کـې د زده کوونکـو د زده کـړې کچـه لـوړیږي او پـه راتلونکي وخت کې د خپل رسالت او مسوولیت د زده کړې او درک لپاره چمتو کیږي.

د لارښودکتاب په دې برخه کې په هغو برخو باندې رڼا اچوو چې له ښوونکي سره د فعالې زدکړې په پرمخ بیولو او له مؤلفینو سره د هماهنګی اوهم فکری په برخه کې مرسته کوي او د ښوونکي لپاره پـه تـدریس کـې پـوره لارښوونه کولای شي.

## پوهنیزه برخه

ددې برخې موخه داده چې زده کوونکي د لوست په معنا اومفهوم وپوهیږي او د بیلابیلو موضوعاتو په باره کې یې پوهه زیاته شي. ددې کتاب په ټولو لوستونوکې د پوهنیزې برخې د پیاوړ تیا په موخه جملې راوړل شوي او زیات زور په تربیوي اړخ باندې زیات شوی دی. د یوې موضوع په باره کې پوهه ترلاسه کول پوهنیزه برخه ده چې د پوهې ترلاسه کول د زده کړې لومړنی شرط بلل کیږي، خو موږ زده کوونکو ته نه وایو چې کومه جمله پوهنیزه، مهارتي اوکومه ذهنیتي ده. په دې باندې یوازې باید ښوونکی پوه شي او داسې فعالیتونه په زده کوونکو سرته ورسوي چې په دغو درې واړو برخو کې له زده کوونکو سره مرسته وکړي.

## مهارتي برخه

په زده کړه کې پوهیدل هغه و خت ارزښت او ګټه لري چې زده کوونکي په عملي ډول کار وکړي، لوستل وکړای شي، په مفهوم یې پوه شي، لوستل شوې جملې ولیکلای شي او په ورځني ژوند کې ورڅخه کار واخیستلی شي. په دې نوي درسي کتاب کې د لوستلو او لیکلو د زده کړې په موخه فعالیتونه ورکړل شوي دي. له دې املـه د درسي کتاب په ټولو لوستونوکې د مهارت برخه په پام کې نیول شوي ده او دغه راز پـه فعالیتونوکې هـم د پـوهې اومهارت په برخه کې فعالیتونه راوړل شوي دي.

## ذهنیتي برخه

له ذهنیتي برخې څخه هدف دادی چې د متن له لوستلو وروسته د زده کوونکو دانشي او مهارتي خوا پیـاوړې شي او د زده کوونکو په ذهنیت، سلوک اوکړو وړوکې بدلون راشي. هغه وخت د زده کوونکو په ذهن کې بدلون راتلای شي چې زده کوونکي د لوست په مفهوم پوه او لـه لوسـت څخـه اخیـستنه وکـړي، لـه هغـه وروسـته د زده کوونکو په کړو وړوکې مثبت بدلون رامنځته کیږي او په خپل ورځني ژوند کې ترې ګټه اخلي. د کتاب د لوستونو په ټولو برخو ترپوهنیزې او مهارتي برخې وروسته د ذهنیتي برخې د پیاوړتیا لپاره جملې راغلي دي او د زده کوونکو لپاره مستقیم او غیرمستقیم پیغامونه ورکړل شوي دي.

## د اوریدلو او غوږ نیولو برخه

د ژبې په زده کړه کې اړینه ده چې د سم اوریدلو، سم غوږ نیولو، سم او با مفهومه لوستلو، لیکلو سم لیدلو او خبروکولو مهارتونه په پام کې ونیول شي. ځکه په دې ټولګي کـې بایـد زده کـوونکي مـتن داسـې ولـولي چـې پـه مفهوم یې پوه شي. د کتاب په فعالیتونو کې د پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي برخو په راوړلو سربیره روزنیز پیامونه هم د زده کوونکو د پوهې د کچې د لوړولو لپاره راوړل شوي دي. د ښـوونې اوروزنـې پوهـانو پـه تـدریس کـې بیلابیـل میتودونه د فعا ل تدریس د اصولو پربنسټ رامنځته کړي دي، لکـه: د لوسـتلو، لیکلـو، سـوال او ځـواب، مقایـسوي، خبرو اترو، مشق او تمرین، یو کسیز، دوه کسیزه فعالیتونه او نور...

د ښوونکو برې په دې کې دا دی چې په خپل مـضمون بانـدې حـاکم وي. د درسـي کتـاب او د ښـوونکي د لارښودکتاب د فعالیتونو له مخې لوست پرمخ یوسي او له مولفینو سره هم فکره اوسي او د هرلوسـت پـه برخـه کـې ورته رښا واچوي.

څومره چې ښوونکی په ډیرو میتودونو پوه وي او څومره چې د لوست په جریـان کـې لـه مرسـتندویه مـوادو څخه کار واخلي، په هماغه اندازه زده کړه اغیزمنه او ګټوره کیږي او د لوست موخې سرته رسیږي.

په دې ټولوکې ښوونکي ته لازمه ده چې په ټولګي کې لاربښوونکی او څارونکی واوسي، پـه ټـولګي کـې د زده کوونکو فردي توپیرونه، لیاقت او استعدادونه په پام کې ونیسي او ټولو زده کوونکوته په کې ونډه ورکړل شـي. د میتودونو د سرته رسولو لپاره لازمه ده چې له مرستندویو توکو څخه کار واخیستل شي.

## د لارښود چوکاټ

په لارښود کتاب کې مو د ځانګې د مؤلفینو په یونظر سره د ښـوونکي د لارښـود لـه بیلابیلـو چوکاټونوڅخـه یوازې همدغه چوکاټ وټاکه. موږ یو لوست د درسي ساعتونو له مخې په درو برخو ونه ویشلو . ددې کار لپـاره مـو یو شمیر دلایل درلودل:

۱- که چیرې یو لوست د ښوونکي لپاره په لارښود کتاب په درو برخو مو ویـشلای وای. د ښـوونکي د غیـر حاضرۍ په صورت کې یو لوست تیریده په بله ورځ مجبور و چې د دویم ساعت لپاره ټاکل شوی لوسـت ورکـړي. په دې ډول د لومړي ساعت لوست پاتي کیده په دویم ساعت کې یې دویمه برخه لوست ورکاوه .

۲- د ښوونکي د ازادۍ او انکشاف مخه نیول کیده . د اصولو له مخې ښوونکی باید د ازادۍ په چوکاټ کـې خپله هم کار وکړي، خپل پلان ولري او یو لوست په خپله خوښه د اونۍ په درسي ساعتونوکې ورته تـدریس کـړي. ښوونکي باید ورځنی، هفته وار، میاشتنی اوکلنی پلان د درسي کتاب د لوست او درسي ساعتونو له مخې جوړ کړي.

۳- که مو یو لوست په درو برخو ویشلای وای د کتاب حجم ډیریده او ډیرې پیسې پرې لګیدلې.

۴- بله دا چې که چیرې درسي ساعتونه کم او یا زیات شي، ښوونکی ددې واک لري چې یو لوست د اونـۍ په درسي ساعتونوکې ورته تدریس او پلان ورته جوړ کړي.

## د تدریس توکي

هغه مواد او نور مرستندوی توکي دي چې ښوونکی د هغـو پـه واسـطه هـدف تـه پـرې ځـان رسـوي. زده کوونکو ته تدریس ګټور او په زړه پورې کوي، د تدریس وسیلې او مرسـتندویه تـوکي، لکـه: تختـه، تباشـیر، تختـه پاک، د الفبا چارټ، انځورونه، د کلمو او جملو لیکلي کارتونه، کمپیوتر، د پروجکتـور پواسـطه د هنـري او تعلیمـي فلمومو ښودل، پروجکتور او نور د تدریس ښې وسیلې بلل کیږي. ښوونکي کولای شي په خپله هم له محیطي موادو څخه د تدریس توکي ورته جوړ کړي.

## ارزونه

ښوونکي ته لازمه ده چې د لوست په پای کې د خپل لوست د ارزونې لپـاره چـې زده کوونکـو څـومره زده کړه کړې ده. له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي. د ارزونې ګټه داده چې ښوونکی د ارزونې په واسطه هم زده کوونکي ارزوي او هم ځان ارزوي.که چیرې زده کوونکي پوه شوي نه وي، ښوونکی کولای شـي چـې لوسـت پـه لنډه توګه یو ځل ورته تکرارکړي او کولای شي چې د لوست میتود بدل کړي.

د هر متن د پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي برخې له پوهیدو وروسته د درس د تحکیم، ټینګښت او پوهېدو لپـاره ارزونه د درسي پروګرام یو بنسټیز رکن دی چې ښوونکی یې باید په پام کې ولري.

## کورنۍ دنده

ښوونکی دې زده کوونکوته مناسـبه کـورنۍ دنـده ورکـړي چـې زده کـوونکي یـې پـه کـورکې سـرته ورسوي. د کورنۍ دندې کتنه ډېره مهمه او ارزښتناکه ده. د کورنۍ دندې په سرته رسولو سـره زده کـوونکي خپـل مسؤولیت احساسوي، له زده کړې سره عادت کیږي، د زده کړې درجه یې لوړیږي او لـه زده کـړې څخـه لـري نـه

پاتې کیږي. ښه ده چې زده کوونکوته د هغوی د پوهې اوپیاوړتیا سره سم بیلا بیلې کورنۍ دندې ورکړل شي او د نورو مضمونونو کورنۍ دندې هم په پام کې ونیسي.

په پخوانیو درسي کتابونو کې یوازې پوهنیزې خواته ډېره پاملرنه شوې وه، خو د پنځم ټولګي په دې نوي درسي کتاب کې د شرایطو او مفرداتو په پام کې نیولو سره د بیا کتنې کارپیل شو او د هر لوست په متن کې پوهنیزه، مهارتي او ذهنیتي برخې ور زیاتې شوي او دغه راز د هر لوست لپاره یوشمیر فعالیتونه چې په هغو کې دانشي، مهارتي او ذهنیتي برخې لري، هم لیکل شوي دي.

په لارښودکتاب کې د ټولو لوستونو لپاره یو عمومي چوکاټ تیارشوي او ډک شوی دی. چوکاټ داسې جوړ شوی دی چې لومړی د چوکاټ په سرکې د لوست شمیره او د لوست د تدریس وخت لیکل شوی دی.

هر لوست باید د اونۍ په درسي ساعتونوکې زده کوونکو ته تدریس شي.

موږ ښوونکي نه قیدوو. ښوونکي باید یو لوست د اونۍ د درسي ساعتونو په پام کې نیولو سره په درو برخو وویشي. له چوکاټ سره سم دې په هر درسي ساعت کې لومړی د درسي کتاب له فعالیتونو څخه کار واخلي. که د کتاب کوم فعالیت پاتې شو بیا دې پاتې فعالیتونه د لارښود کتاب له فعالیتونو سره د نورو دوو درسي ساعتونو لپاره په پام کې ونیسي. په زده کوونکو دې عملي کړي او که وخت و ښوونکي کولای شي د همد غه ډول فعالیتونو په ډول نور فعالیتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوي. په لومړي درسي ساعت کې دې د کتاب له مخې کورنۍ دنده ورته ورکړي او په دویم درسي ساعت کې دې د لارښود له مخې کورنۍ دنده ورته وسپاري او په دریم درسي ساعت کې دې په خپله خوښه کورنۍ دنده ورڅخه وغواړي. د درسي کتابونو د تألیف په برخه کې په درسي کتابونو بیا کتنه د معارف له ستراتیژۍ سره سمه شوي ده چې زده کوونکي د لومړی دورې تر فارغیدو وروسته په لوستلو اولیکلو و پوهیږي. له دې امله لازمه ده چې ښوونکي زده کوونکو ته ددغه لارښود کتاب له مخې د زده کړې مهارتونه او فعالیتونه په پام کې ونیسي او زده کوونکي په زده کړه کې جسمي او ذهني فعال ګډون وکړي.

د پنځم ټولګي درسي کتاب چې ستاسو په واک کې دی، تر بیاکتنې وروسته یې خپل قانوني پړاوونه وهلي، چاپ او ستاسو په واک کې درکړل شوی دی.

د پنځم ټولګي درسي کتاب د فزیکي جوړښت له مخې ۳ برخې لري:

- د کتاب مقدماتي برخه
- د متن برخه
- وروستۍ برخه

## د کتاب مقدماتي برخه

په لومړی برخه کې د کتاب مقدماتي برخه راغلي ده چې په هغې کې د لارښود نوم، د مؤلفینو نومونه، د ژبې د اډیټور نوم، د دیني، سیاسي او کلتوري کمیټې نومونه لیکل شوي. (د هرې برخې مسؤول په خپله برخه کې کتاب لیدلی او د هغو له خوا تیروتنې په ګوته شوي او سمې شوي دي.) تر هغو وروسته بسم الله الرحمن الرحیم، ملي سرود، د پوهنې د وزیر پیغام او د کتاب لیک لړ راغلي دي.

- د کتاب په دویمه برخه کې د درسي کتاب متن راغلی دی.
- په وروستۍ برخه کې د معارف ترانه راغلي ده.

**درنوښوونکو!**

په ټول تعليمي کال کې له رخصتۍ پرته ۲۸ درسي اونۍ په پام کې نيول شوي دي. په هره اونۍ کې په ابتدايه ټولګيوکې د پښتو ژبو زده کوونکو لپاره په اونۍ کې ۵ درسي ساعتونه د اوس لپاره په پام کې نيول شوي دي چې ټول ۱۴۰ ساعتونه کيږي. موږ د ټول تعليمي کال د ۲۸ اونيو په پام کې نيولو سره په درسي کتاب کې ټول ۴۶ لوستونه راوړي دي چې يو لوست په ۳ درسي ساعتونوکې تدريس کيږي او ټول ۱۳۸ ساعتونه کيږي او دوه درسي ساعتونه دکلنۍ ازموينې په خاطر د تکرار لپاره پاتي کيږي.

بايد يادونه وکړو چې موږ د درسي کتاب په لوستونو کې لومړی د لوست شميره راوړي ده. تر هغه وروسته د لوست سرليک او بيا ترې لاندې د اصولو له مخې تصويرونه اوعکسونه څکه راوړي دي چې هر عکس اوانځور د متن يوه برخه بلل کيږي.

له هر عکس او يا انځور لاندې د لوست موخه راغلي ده چې د همدغې موخې په اساس متن برابر شوی دی او د همدغې موخې په اساس ورته فعاليتونه عيار شوي چې ښوونکي يې په زده کوونکو باندې سرته ورسوي او خپله ورسره مرسته وکړي. تردې وروسته هڅوونکې پوښتنې راغلي دي. له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې د هغو ذهن لوست ته راوګرځي. کله کله کولای شي چې د انځور په هکله هم له زده کوونکو څخه انګيزوي پوښتنه وکړي چې په عکس اويا انځورکې څهويني؟

وروسته د لوست متن راغلی دی. په متن کې دانشي، مهارتي او ذهنيتي خواوې په پام کې نيول شوي دي. تر متن وروسته فعاليتونه راغلي دي، ښوونکي کولای شي لومړی د درسي کتاب فعاليتونه او بيا وروسته د همدې لارښود کتاب فعاليتونه په زده کوونکو باندې کار وکړي.

کله چې ښوونکی ټولګي ته ور شي، لومړی به مقدماتي فعاليت سرته ورسوي يعنې ترهر څه د مخه بايد سلام واچوي چې په زده کوونکي کې تربيتي روحيه پياوړي شي. بيا به د هغوی د تيرې ورځې د غيرحاضرۍ پوښتنه وکړي، حاضري به واخلي. د تير لوست په هکله به پوښتنه وکړي او بيا به کورنۍ دنده وګوري. کورنۍ دنده داسې نه چې يوازې د يو څوکسو بلکې د ټولو زده کوونکوکورنۍ دنده به ګوري، که وخت نه و، ښوونکی کولای شي چې کتابچې ترې را ټولې او په وزګار وخت کې يې په دقيق ډول وګوري او هر زده کوونکي ته په کتابچه کې د تيروتنو د حل لارښوونه ورته وکړي. په مقدماتي برخه باندې بايد له ۵ دقيقوڅخه زيات وخت ونه لګوي څکه چې دنور لوست لپاره وخت نه پاتي

کيږي کولای شي دشمير دزياتوالي لامله يوازې ناسوب زده کوونکي يادداشت کړي اوکه دکورنۍ دندې ليدلوته ډيروخت په کار و، کولای شي چې له ځان سره يې يوسي اوپه کورکې يې وګوري.

بايد يادونه وکړو چې موږ د درسي کتاب په لوستونو کې لومړی د لوست شميره راو ړي ده. تر هغه وروسته د لوست سرليک او بيا ترې لاندې د اصولو له مخې تصويرونه او عکسونه څکه راو ړي دي چې هر عکس او انځور د متن يوه برخه بلل کيږي اوله متن سره ارتباط لري.

له هر عکس او يا انځور لاندې د لوست موخه راغلي ده چې د همدغې موخې په اساس متن برابر شوی دی او د همدغې موخې په اساس ورته فعاليتونه عيار شوي چې ښوونکي يې په زده کوونکو باندې سرته ورسوي او خپله

ورسره مرسته وکړي. تردې وروسته هڅوونکې پوښتنې راغلې دي. له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ چې د هغوذهن لوست ته را وګرزي. کله کله کولای شي چې د انځور په هکله هم له زده کوونکو څخه انګیزوي پوښتنه وکړي چې په عکس او یا انځورکې څه ويني؟

بیا به د لوست سرلیک پرتختې ولیکي او د لوست د سر لیک یا د تصورير په هکله به له زده کوونکو څخه انګیزوي پوښتنې وکړي. که لازمه وه دسرلیک په هکله زده کوونکوته پوره معلومات ورکړئ بیا وروسته به لوست پیل کړي. په لارښودکتاب کې د لوست ورکولو لپاره د هر لوست لپاره چوکاټ ورکړل شوی. له چوکاټ سره سم به وړاندې ولاړشي.

درنوښوونکو!

که چیرې ستاسوپه ټولګي کې داسې زده کوونکي وي چې د کتاب متن په سمه توګه لوستلی شي، نو څو زده کوونکي دې د لوست متن ورته ولولي، تاسو هم ورته متوجې اوسئ او مرسته ورسره وکړئ اوټول زده کوونکي ورته متوجې کړئ او که چیرې مو زده کوونکي کمزوري وي تاسو متن ورته په مناسب اواز ولولئ او بیا دې نورزده کوونکي په وارسره ووايي.

که په متن کې ستاسو به نظر نوي لغتونه راغلي وي هغه پرتختې ولیکئ اوڅوځلې یې ورته تکرار کړ ئ چې زده کوونکي د هغو له لوستلوسره بلد شي. موږ کوښښ کړی دی چې په متن کې داسې کلمې راوړو چې زده کوونکي په خپل محیط کې ورسره اشنا وي، که چیرې په کوم لوست کې داسې لغت راغلی وي چې زده کوونکي د هغه په معنا پوه نه شي، تاسو نوموړی لغت په داسې جملوکې ورته ووايئ چې له جملې څخه د لغت مانا وپيژني.

که چیرې ستاسو په زده کوونکوکې داسې کسان وي چې دهغوی دسترګوديد کم وي اویامعلول زده کوونکي وي اویا دهغوی ونې ټيټې وي اویا کوچني وي، داسې زده کوونکي په مخکې کتارکې کينوئ.

**درنوښوونکو!**

تاسو باید زده کوونکو ته د هر لوست د سرلیک په هکله رڼا واچوئ چې هغوی د لوست په هکله معلومات ترلاسه کړي.

دغه راز زده کوونکوته تل سپارښتنه وکړئ چې له ښوونځي څخه سیده خپلوکورونو ته ولاړشي، په لاروکې مشرانوته او په کور کې مور پلار او مشرانوته سلام واچوي. په کورونو کې خپل مور او پلار او دکورنۍ غړو ته درناوی ولري او خپلې کورنۍ دندې سرته ورسوي، تفریح او سپورت هم وکړي، خو ور سره له کورنۍ سره مرسته هم وکړي.

ښوونځي ته په تګ راتګ کې د چا میوو او فصلونو ته زیان ونه رسوي. په سرکونو باندې پام وکړي چې موټر یې ونه وهي. له سرکونو څخه د تیریدلو په باره کې ورته لارښوونه وکړئ. زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې کله په سرک باندې تیریږي، ښي او کيڼې خوا ته ښه وګوري چې موټر نه وي بیا په ارامه تیرشي. په سرک باندې منډه ونه کړي چې چلوونکي اوتریږي. که په ښارونو کې وي او هلته ترافیک پولیس ولاړ وي، له هغه دې مرسته وغواړي چې له سرک څخه یې تیرکړي او که ترافیک پولیس نه وي او څلور لارې وي او هلته زګنال څراغونه موجود وي، ورته ووايئ کله چې اشاره شنه شوه بیا په ارامه تیر شئ او کله چې اشاره زیړه شوه د سرک په غاړه ودریږئ چې اشاره سره کیږي او په سره اشاره کې موټرونو ته د تیریدلو اجازه ده کله چې اشاره شنه شوه، بیا تیر شئ.

د زلزلو په وخت کې که زلزله ورو وه، باید په ارامه توګه په زینو باندې کښته شي، ټیله اومنډې ونه کړي، ځکه په منډو کې لویږي او نور زده کوونکي پرې د پاسه تیریږي بیا ژوبلیږي او که د زلزلې حرکت تیز و، باید د خپلو میزونو لاندې پټ شي او یا دې د زینو لاندې شي چې سرونه یې له ضربې څخه وساتل شي.

زده کوونکي په دې پوه کړئ که چیرې تیز باران شي او یا ږلۍ پیل کیږي، باید په خوړونوکې ولاړ نشي، لوړ ځای ته وخیژي او نږدې یو امن ځای ولاړ شي او یا د کوم خپلوان کره اویا خوکوم نږدې جومات ته ولاړشي. کله چې باران اویا ږلۍ ودریده، بیا دې خپلو کورونو ته ولاړشي، تاسې یې په زیانونو پوه کړئ.

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې خپلومشرانو ته ووایي چې په ټیټو ځایونو یا هغوځایونوکې چې د زیات باران او ږلۍ په وخت کې د سیلابونو د راوتلو امکان وي، خپل کورونه جوړ نه کړي چې مادي او معنوي زیانونه ورته رسیږي.

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې په تګ راتګ کې ونې مه ماتوئ. کوښښ وکړئ چې د خپل کور شاوخوا پاکه او سمسوره وساتئ، ځکه چې په پاک چاپیریال کې روغتیا موجود وي او خپله شاوخوا مو پرې ښکلي وي.
زده کوونکوته لارښوونه وکړئ چې خپل ځان، کالي او نوکان پاک وساتي او ترې اوږده نه شي چې مکروبونه پکې ځای نیسي او انسان ناروغه کیږي.که امکان ولري تل خپلو زده کوونکو ته د همدې روزنیزو برخو په باره کې لارښوونه وکړئ ځکه چې ستاسو لارښوونې پر زده کوونکو باندې ښې اغیزې لري.

ستاسو د بري په هیله

## لومړی لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | حمد |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>پوهنیزې<br>مهارتي<br>ذهنیتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي په حمد و پیژني چې په حمد کې د خدای تعالی ستاینه کیږي.<br>- زده کوونکي به حمد په سمه توګه ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- زده کوونکي به د حمد له سم لوستلوسره مینه پیدا کړي. |
| د تدریس لارې | یوکسیز، دوه کسیز، ډله ییز او د سوال او ځواب لارې |
| د تدریس مرستندوی توکي | - کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته او تخته پاک |
| مقدماتي فعالیتونه | - ښاغلی ښوونکی! ټولګي ته په راتګ سره د بسم الله الرحمن الرحیم په ویلو سره سلام واچوئ، له زده کوونکو سره ستړي مشي وکړئ.<br>په ټولګی کې زده کوونکې تنظیم او بیا حاضري واخلئ. د اونۍ په دې لومړي ساعت کې لومړی زده کوونکو ته خپل نوم ور وپیژنئ او بیا به زده کوونکي خپل نومونه ووایي چې یوله بل سره و پیژني. دا کار د لومړی اونۍ تر هر لوست د مخه تکرارکړئ چې له یو بل سره و پیژني.<br>- له دې وروسته به د نوي کال د ښو هیلو اوزده کړې د اړتیا او دغه راز د حمد د سم لوستلو په هکله ځینې تشویقوونکې خبرې وکړئ. |
| انګېزوي پوښتنې | له زده کوونکو څو انګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په اند په حمد کې د چا ستاینه کیږي. |
| د ښوونکي فعالیتونه | - له مقدماتي فعالیتونو او پیژندنې وروسته زده کوونکوته دحمد په باره کې خبرې وکړئ.<br>نوی لوست زده کوونکو ته یوځل په مناسب اواز ووایئ، زده کوونکي دې خپلوکتابونو ته وګوري او د ښوونکي لوستل دې تعقیب کړي.<br>بیا له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې څوک به نوی لوست ولولي. چا چې ګوتې پورته کړې، له هغو څخه دې څو تنه حمد ولولي او خپله ورسره مرسته وکړئ، نور زده کوونکي دې لوست ته وګوري.<br>- یو زده کوونکی تختې ته پورته کړئ. د متن یوبیت دې بل زده کوو نکي ته ولولي او هغه بل دې پرتختې و لیکي، دریم زده کوونکی دې د هغه تیروتنه و نیسي.<br>- څو زده کوونکي په وار سره پورته کړئ، د حمد د شعر د مفهوم په هکله دې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ و نیسي.<br>- زده کوونکي په ډلو وویشئ. یو زده کوونکی دې د خپل ګروپ نومونه پرتختې و لیکي او بل زده کوونکی دې تختې ولاړشي، پرتختې دې ولولي. |

| | |
|---|---|
| | - په یو زده کوونکی متن ولولئ. له متن څخه دې څو کلمې په جملوکې وکاروي.<br>- که وخت و، کولای شئ خپله یو یا څو فعالیتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله څو پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- په حمد کې څه ویل کیږي؟ |
| **کورنۍ دنده** | هر زده کوونکی دې په کورکې د حمد په باره کې څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | که چیرې ځمکې اوآسمانونو، شپوورځو، مخلوقاتواودمخلوقاتوجوړښت اود ژوند یوژوند کولو اوپه دوی کې بدلونونو اوټولوکایناتو ته ځیر شو، دابه راته څرګنده شي چې خدای شته اوخدای یو دی ځکه چې ددوو خدایانو په شته والي داسې نظم اوتخلیق امکان نه لري.<br>الله ﷻ بې نیازه ذات دی چې ټول کاینات یې پیدا کړي دي. خدای ﷻ همیشه او په خپل ذات کې شریک نه لري. نه له چا پیدا دی او نه څوک ترې پیدا دي. دغه لوی ذات هر ژوندي ته د ژوند او رزق ور کوونکی دی.<br>په ذات، صفاتو او کړنو کې هیڅوک ورسره شریک نشته. له هر ډول نیمګړتیاوو څخه پاک اومنزه دی. خدای ﷻ په ټولومخلوقاتوکې انسانان اشرف المخلوقات پیدا کړي، انسان ته یې لوړ مقام ورکړی دی او په خپل کتاب قرآن کریم کې یې یادونه کړې ده. موږ باید د خدای ﷻ شکر په ځای کړو چې موږ ته یې شرف راکړی او موږ ته یې روغ صحت او سالم عقل راکړی چې خدای ﷻ و پیژنو، عبادت یې وکړو اوشکریې پرځای کړو.<br>خدای ﷻ د ډیرو صفتونو درلودونکی دی. موږ به دلته په یوشمیر صفتونو باندې خبرې وکړو.<br>حمد د خدای ﷻ د ثنا او صفت بیانولو ته وایي.که د غه صفتونه په نثرکې وي اوکه په شعر او نظم کې وي. زمو ږ ټولنه چې یوه اسلامي ټولنه ده، مو ږ هر نیک کار په بسم الرحمن الرحیم سره پیلوو او دغه راز کله چې یو شاعر د خپلو شعرونو دیوان او ټولګه لیکي، نو په پیل کې یې د خدای ﷻ ستاینه راوړي. په دغه ستاینه کې به خامخا یا د خدای ﷻ ذاتي صفتونه بیانوي اویا به دخدای ﷻ فعلي صفتونه بیانوي. انسان خدای ﷻ د صفاتو پواسطه پیژندلای شي، نو باید د خدای د صفتونو په پیژندنه کې زیار و باسو، ځکه چې انسان د خپل توان په اندازه سره خدای پیژندلای شي.<br>لازمه ده چې په ذاتي او فعلي صفتونو باندې خبرې وکړو.<br>د خدای ﷻ صفتونه په دوه ډوله دي:<br>ثبوتي او سلبي یا که ووایو، ذاتي او فعلي صفتونه.<br>ثبوتیه صفتونو ته کمالیه صفتونه هم ویل کیږي.<br>ذاتي یا ثبوتي هغه صفتونه دي چې په هغو کې د خدای ﷻ له کمالاتو څخه کمال بیانیږي او هغه ثبوتي اووجودي خوا لري او د هغو نفي د خدای ﷻ لپاره یو ډول نقض رامنځته کیږي یا داچې د هغو صفتونو په نفي سره د خدای ﷻ یو ډول نفي کول رامنځته کیږ ي. ذاتي صفتونه د خدای له ذات سره ملګري دي او د خدای ﷻ له ذات څخه د هغو صفتونو سلبول امکان نه |

| | |
|---|---|
| لري.<br>که چیرې د خدایﷻ له ذاتي صفتونو څخه سترګي پټي کړو اویوازې د خدایﷻ په ذات تکیه وکړو بیا به هم له ذاتي صفتونو سره مخ شو. د بیلګې په توګه وحدانیت، علم، قدرت، ژوند، خلق کول او نور.<br>فعلي صفتونه هغه صفتونه دي چې د هغو په نفي کیدو سره د خدایﷻ نفي نه رامنځته کیږي. د هغو په نفي کیدو سره د خدایﷻ کمالیه او ثبوتیه صفتونه له منځه نه ځي. که دا صفتونه نه وي، هم خدایﷻ وجود لري او خدایﷻ به موجود وي، لکه: رزق ورکول اونور. | |

## دویم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **نعت** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- نعت به و پیژندلای شي.<br>- د نعت په هکله به خبرې وکړای شي.<br>- له نعت سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څو انګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په اند په نعت کې د چا ستاینه کیږي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونو وروسته دنعت په باره کې زده کوونکوته معلومات ورکړئ، اوبیا زده کوونکوته لوست په مناسب اواز ولولئ اوبیا دې څوزده کوونکي<br>د لوست متن ولولي او خپله ور سره مرسته وکړئ.<br>- په څو زده کوونکي د متن یو یو بیت ولولئ، تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یوزده کوونکی پورته کړئ، لومړی، دویم او دریم بیت دې معنا کړي.<br>- زده‌کوونکي دې په خپله خوښه دکتاب له لوست څخه څو نومونه په خپلو کتابچوکې ولیکي او بیا دې په جملو کې وکاروي اوڅوکسه دې په ټولګي کې ووايي.<br>- یو زده‌کوونکی د تختې مخې ته ر او غواړئ، بل زده‌کوونکی دې ورته دکتاب یو بیت ولولي، هغه دې پرتختې ولیکي او نور زده‌کوونکي دې د هغه تیروتنه اصلاح کړي.<br>- په یو زده‌کوونکي متن ولولئ او په خپلو کتابچوکې دې له متن څخه څوکلمې په خپله خوښه سره و ټاکي او په جملو کې دې وکاروي، بیا دې په ټولګي کې نورو ملګرو ته په مناسب اواز ووايي.<br>-. زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ. هر ډله دې د ښوونځي په هکله په مشوره سره څو کرښې ولیکي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- نعت د چا په باره کې ویل کیږي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د نعت په هکله څوکرښې په خپلو کتابچوکې ولیکي اوپه بل درسي ساعت کې دې راوړي. |
| **اضافي معلومات** | حضرت محمدﷺ د عبدالله زوی د عبدالمطلب لمسی دی. په ټولو پیغمبرانو کې لومړنی او وروستنی پیغمبر دی. د دوشنبې په ورځ پیدا شوی دی. تر زیږیدو د مخه د هغه پلار |

مړشوی و، کله چې وزیږیده، خپل نیکه کعبې شریفې ته یووړ اوهلته یې د محمد نو م پرې کیښود اوسرپرستي یې د نیکه په غاړه وه.
په هغه وخت کې داسې رواج و چې ځینوخلکو به خپل ماشومان نورو ښځو ته د شیدو ورکولو لپاره ورکول.
دحضرت محمدﷺ له زیږیدو وروسته یوشمیر میرمنې مکې معظمې ته راغلې وې چې د شیدو ورکولو لپاره ماشومان پیدا کړي اوپه مقابل کې ترې اجوره واخلي.
په دې ډله کې حضرت محمدﷺ د بی بی حلیمې په برخه شو اوخدایﷻ د هغې په کورکې ډیر ښکاره برکتونه واچول. یو برکت دا و چې د هغوی په ژوند کې سوکالي راغله او پرمالونوکې یې برکت راغی.
حضرت محمدﷺ له کوچنیوالي څخه په امین مشهور و. په ۲۵ کلنۍ کې یې له بی بی خدیجې سره چې۴۰ کلنه وه، واده وکړ. په ۴۰ کلنۍ کې پیغمبرشو او په ۶۳ کلنۍ کې یې له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې. پوره ۲۳ کاله یې بشریت ته د اسلام اصول بیان کړل او د دنیا او اخرت په باره کې یې ورته لارښوونې وکړې.
په پیغمبری باندې دحضرت محمدﷺترپیغمبر کیدو دمخه دجاهلیت توره دوره خپره شوي وه. خلکو به بتانو ته سجدې کولې اولونې به یې ژوندې ښخولې، خوکله چې داسلام مبارک دین راغی، دښځومقام ته په درناوی سره وکتل. دانساني ژوندانه دوره پیل شوه اوانسانیت ته دقدر په سترګه وکتل شول. بت پرستي داسلامي ارشاداتو په خپرولوسره پای ته ورسیده او ورو ورو دنړۍ بیلابیلو سیموته داسلام دین ورسید اوپه نړۍ کې دمسلمانانو لیکي پیاوړې شوې.
حضرت محمد ﷺ دډیر نیک خوی او اخلاقو خاوند و اوله کوچنیوالي څخه په امین مشهور شوی و. یوځل دځلورو قومونو ترمنځ دحجرالاسود دتیږې په ایښودلو باندې مخالفت موجود رامنځته شوی و. حضرت محمد ﷺ نوموړې تیږه په څادر کې واچوله اود څادر هره پیڅکه یې د هرقوم د مشر په لاس کې ورکړه او دحجرالاسود تیږه یې په دې ترتیب په خپل ځای کې کیښوده اوپه دې ډول یې د قومونو ترمنځ جنجال پای ته ورسوله.
د خدایﷻ له خوا حضرت پیغمبرﷺ د ټول بشریت لارښوونکی دی. که څوک وغواړي چې په دنیا او اخرت کې کامیاب وي، باید د هغه په لارښوونو باندې عمل وکړي. یوازې د اسلامي ارشاداتو په رڼا کې کولای شو چې خپل ژوند په سمه توګه پرمخ یوسو او له ګناه څخه وساتل شو.
دغه راز که یوڅوک په خپل شعر کې د پیغمبرﷺ صفتونه بیان کړي او د هغه سیرت او خویونه بیان وکړي، داسې لیکنې ته نعت وایي. زموږ په هیواد کې دود دی چې شاعران په خپلو شعرونوکې نعتونو ته هم برخه ورکوي او د خپلو ټولګوپه سرکې یې راوړي. ښوونکي کولای شي چې نورهم د حضرت محمدﷺ د سیرت په هکله نورې خبرې هم وکړي

**دریم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **بي بي عا يشه** (رضی الله عنها) |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به بي بي عايشه(**رضی الله عنها**) وپيژندلای شي.<br>- د بي بي عايشې (**رضی الله عنها**) په هکله به خبرې وکړای شي.<br>- د بي بي عايشې (**رضی الله عنها**) له پوهې او کارونو سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز فعاليتونه |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | -کتاب، کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته اوتخته پاک |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګيزوي پوښتنې** | د لوست په هکله انګيزوي پوښتنې وکړئ، لکه: ستاسو په فکر بي بي عايشه (**رضی الله عنها**) څوک وه؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونو وروسته دبي بي عايشې(**رضی الله عنها**) **په هکله معلومات ورکړئ بيا** يوځل لوست زده کوونکوته په مناسب اواز ولولئ او بيا دې څوزده کوونکي په وار سره متن ولولي او خپله ورسره مرسته وکړئ.<br>- يو زده کوونکی دې بل ته دکتاب له مخې يوه جمله ووايي او هغه دې پر تختې وليکي، بل زده کوونکی دې د هغه تيروتنه ونيسي.<br>- په زده کوونکو د لوست متن ولولئ، بيا دې له متن څخه په خپله خوښه يوه جمله وليکي او په ټولګي کې دې وو ايي.<br>- په څو زده کوونکو متن ولولئ او په خپلو کتابچوکې دې له متن څخه څو کلمې په خپله خوښه سره و ټاکي او په جملو کې دې و کاروي، بيا دې په ټولګي کې نورو ملګرو ته په مناسب اواز ولولي.<br>- يو زده کوونکی دې د افغانستان د بيرغ رنګونه پرتختې وليکي او بل زده کوونکی دې په جمله کې وکاروي.<br>- يو زده کوونکی دې ووايي چې د بي بي عايشې (**رضی الله عنها**) پلار څوک و او څه کارونه يې کړي دي.<br>- تاسو په خپله خوښه يو شمير فعاليتونه د پورته فعاليتونو په څير په زده کوونکو باندې سرته ورسوئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله څو پوښتنې وکړئ، لکه: |

| | |
|---|---|
| - د بي بي عايشې **(رضی الله عنها)** په هکله خپل معلومات ووايئ؟ | |
| زده کوونکي دې په کورکې د بي بي عايشې**(رضی الله عنها)** په هکله څوکرښې وليکي. | **کورنۍ دنده** |
| بي بي عايشه **(رضی الله عنها)** د حضرت ابوبکر صديق لور وه. د بي بي عايشې لقب صديقه او کنيت يې ام عبدالله و. ددې مبارکې کنيت نوم ځکه عبدالله و چې نوموړې اولاد نه درلوده. د خپل وراره عبدالله ساتنه اوپالنه يې کړې وه . له کوچنيوالي څخه هوښياره او د ښه استعداد خاونده وه. نوموړې په يوې مسلمانې کورنۍ کې سترګې غړولې دي. نوموړې وايي:<br>په کوم وخت کې چې ما خپل مور او پلار و پيژندل، نو هغوی مې مسلمان وليدل. د هغې مبارکې د پاکوالي په برخه کې په قرآن کريم کې ايتونه نازل شوي دي. د حضرت محمدﷺ له بعثت څخه ۴ کاله وروسته زيږيدلې ده.<br>د شوالمکرم (حمل) په مياشت کې د هغې واده شوی دی چې په دې وخت کې ۹ کلنه وه . له نبي کريمﷺ سره يې ۹ کاله ژوند کړی دی. حضرت عايشه د امير معاويه د حکومت تراتلسم کاله پورې ژوندۍ وه. په پای کې په ۵۸ هجري کال د رمضان په مياشت کې ناروغه او د همدې کال د همدې مياشتې په ۱۷ نيټه د شپې له وترواجب لمونځ کولو وروسته د ۶۶ کلنۍ په عمر کې وفات شويده. د جنازې لمونځ يې ابو هريره (رض) اداکړ. ددې له وصيت سره سم په جنت البقيع کې خاورو ته سپارل شوي ده.<br>نبي کريمﷺ ورسره ډېره مينه درلوده او د ژوند وروستی سلګۍ يې هم د همدغې بي بي په غيږ کې کړي دي.<br>د بي بي عايشې**(رضی الله عنها)** د ژوند علمي اړخ هم ډېر څرګند دی. په اسلامي علوموکې يې ډير علم کړی و. په اسلامي نړۍ کې له پوهو بيبيانو څخه شميرل شوي ده. ډيرو اصحابو په حديثوکې د هغې شاګردي کړي ده. له دې مبارکې څخه ۲۲۱۰ حديثونه روايت شوي دي. نوموړې به په شرعي مسايلوکې فتواوې ورکولې. په تفسير او حديثوکې د ډيرې پوهې خاونده وه.<br>له حديثواو دبي بي عايشې له علم اوپوهې څخه دا څرګنديږي چې ښځو ته داسلام په مبارك او سپيڅلي دين کې دعلم اوپوهې دلاسته راوړلو اونورو ته دتدريس ورکولو حقوق ورکړل شوي دي. موږ ته لازمه ده چې دخپلو اولادونو په زده کړه کې که هلکان وي اوکه انجونې وي، زيات کوښښ وکړو اوهغو ته په مساوي اندازه دزده کړې زمينه برابره کړو.<br>ماخذ: - حقپالونکي صحابه اوصحابيات د قيام الدين کشاف ليک<br>- مسند ابن حنبل | **اضافي معلومات** |

## څلورم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ښوونکی |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>پوهنیزې<br>مهارتي<br>ذهنيتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به د ښوونکي ځانګړتیاوې وپیژني.<br>- زده کوونکي به خپلوښوونکو ته درناوی وکړای شي.<br>- د ښوونکوپه هکله به خبرې وکړای شي.<br>- له ښوونکو سره به يې مینه پیدا شي. |
| د تدریس لارې | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| د تدریس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| مقدماتي فعالیتونه | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| انګیزوي پوښتنې | د لوست په اړوند هڅوونکې پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- تاسوکله د خپلو ښوونکو درناوی کړی دی؟ |
| د ښوونکي فعالیتونه | - له مقدماتي فعالیتونو وروسته دمهربان ښوونکي په هکله زده کوونکوته خبرې وکړئ، بیا ورته تاسو متن ولولئ او بیا په څوزده کوونکي متن په واره سر ولولئ او په لوستلو کې ورسره مرسته وکړئ. نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- اوس دې زده کوونکي لاندې کلمې پرتختې ولیکي او په جمله کې دې استعمال کړي: مهربان، ښوونکی، سلام، هیواد، شاګرد<br>- څو زده کوونکي دې د لوست په مفهوم باندې خبرې وکړي.<br>- په زده کوونکو په ګروپي ډول د لوست متن په چوپه خوله ووایئ. له لوستلو وروسته دې یوتن د ټولګي مخې ته ورشي. لوست دې د ټولګي په مخ کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي، له کتاب پرته دې د ښوونکې په هکله خبرې وکړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکی دې لاندې کلمې بل زده کوونکي ته ووایي او هغه بل دې په جملوکې وکاروي او دریم زده کوونکی دې ووایي:<br>ښوونکي - قهر - پوښتنې – مهربان- کارونه - چلند |
| د لوست ارزونه | ښوونکي دې د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړي، لکه: ښه ښوونکی چاته ویلای شو؟ |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې د مهربان ښوونکي په هکله څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | ښوونکی په ښوونځي کې لوړ مقام لري ځکه چې د ټولنې راتلونکي نسل ته د علم او پوهې د ورکولو او روزلو دنده په غاړه لري. دنړۍ پرمختګ اوانکشاف دښوونکي په برکت شوي دي.<br>که ښوونکی نه وای نن به نړۍ دبیلا بیلو ټولنو دا بې ساری پرمختګ شوی نه وای، نوویلای شو چې که له یوې خوا ښوونکي ته په درنښت سره کتل کیږي له بلې خوا د ښوونکي په غاړه هم یو شمیر دندې پرتې دي چې باید هغه سرته ورسوي.<br>نن سبا په ټوله دنیا کې دمعلم محوری په ځای دفعالې زده کړې یا مشارکتي زده کړې میتود ونه رامنځته شوي دي . په دې معنا چې اوس په زده کړه کې یوازې زده کوونکي برخه اخلي اوښوونکي ورسره مرسته کوي اودزده کوونکو څارنه کوي. له بلې خوا دښوونکو دنده ده چې همیشه په زده کوونکوباندې مهربانه وي اوله زده کوونکوسره په تدریس کې له مهربانۍ او زړه سوي څخه کار واخلي.<br>له هغو دندو څخه یوه هم د ښوونکي مهرباني ده. ښوونکی باید په خپلو زده کوونکو باندې مهربان او مینه ناک وي. زده کوونکو ته په پوره مهربانۍ سره لوست ورکړي او په مهربانۍ سره ترې پوښتنې وکړي.<br>که چیرې د ښوونکي او زده کوونکو تر منځ فضا دوستانه وي، زده کوونکي له ښوونځي او له ښوونکي سره مینه پیدا کوي. غیرحاضري نه کوي او هره ورځ ښوونځي ته ځي.<br>که چیرې ښوونکی دیکتاتور او غصه ناک وي، دداسې ښوونکي او زده کوونکوترمنځ واټن زیاتیږي. زده کوونکي د لوست د زده کړې په ځای دښوونکي تندي ته ګوري. له ښوونکي څخه ویریږي او لوست ته نه متوجي کیږي.<br>د کومو ښوونکو او زده کوونکو ترمنځ چې فضا په زړه پورې وي، د داسې زده کوونکو او ښوونکي ترمنځ د تل لپاره مینه موجود وي او زده کوونکي ور ته درناوی کوي. د اوسني تعلیمي بهیر اصول همدا دي چې ښوونکی باید ډیر مهربان وي او د زده کړې بهیر په داسې ډول سرته ورسوي چې ټول زده کوونکي په کې ونډه واخلي.<br>که چیرې په ښوونځي کې دښوونکي اوزده کوونکو ترمنځ فضا دوستانه نه وي. له ښوونځي څخه دزده کوونکو زړه توریږي او ورو ورو یې غیرحاضري ډیریږي اودهرې ورځې په تیریدو سره ورڅخه لوستونه تیریږي اودلوستونو بارپرې درندیږي. خپلې کورنۍ ته دخپل نه تګ په باره کې بیلابیلې پلمې کوي. همدا وجه ده چې له لومړي ټولګي څخه تردولسم ټولګي پورې ډیر کم شمیر زده کوونکي رسیدلی شي او په همدغه اوږده دوره کې ډیر شمیر زده کوونکي له تعلیمي بهیر څخه پاتي کیږي.<br>په ټولګي کې دبیلا بیلو استعدادونو درلودونکي زده کوونکي ناست وي، یوشمیر زده کوونکي دلوست په اخیستلو کې قوي و ي اویو شمیر یې کمزوري وي، ښوونکي ته ښایي چې په ډیره مهربانۍ سره له کمزورو زده کوونکو سره لایقه اوپوه زده کوونکو ته دنده وکړي چې ورسره مرسته وکړي. |

# پنځم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | د مشرانو درناوی |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>پوهنیزې<br>مهارتي<br>ذهنیتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د مشرانو درناوی به وپیژني.<br>- مشرانو ته به درناوی وکړي.<br>- د مشرانو له درناوي سره به یې مینه پیدا شي. |
| د تدریس لارې | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| د تدریس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| مقدماتي فعالیتونه | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| انگیزوي پوښتنې | له زده کوونکو څو انگیزوي پوښتنې وکړئ، لکه: په تاسوکې به څوک د مشرانو د درناوي په هکله خبرې وکړي؟ |
| د ښوونکي فعالیتونه | - له مقدماتي فعالیتونووروسته مشرانوته ددرناوي په هکله ورته خبرې وکړئ، بیا متن ورته ولولئ وروسته په څو لایقو زده کوونکو باندې متن په وارسره ولولئ. نور زده کوونکي دې ورته ځیر وي.<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي اود لوست پاراگراف دې ولولي. بیا دې څو زده کوونکي د هغه پاراگراف په هکله نورې خبرې و کړي.<br>- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې لغتونه معنا او بیا دې په جملو کې و کاروي:<br>اړ، ستونزه، مرسته، ملگرتیا، وخت، ژوند ، ټولنیز<br>- څو زده کوونکي دې په ټولگي کې د مشرانو د درناوي په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غو ږ ونیسي.<br>- یو زده کو ونکی دې تختې ته پورته شي. د کتاب یو پاراگراف دې بل زده کوونکي ته ووایي، هغه دې پرتختې ولیکي او بیا دې ولولي. نور زده کوونکي دې د هغه تیروتنه ونیسي او د اصلاح لپاره دې تختې ته راشي.<br>- اوس دې یو زده کوونکی د مشرانو د درناوي په هکله یو کرښه پرتختې ولیکي. نور زده کوونکي دې د هغه تیروتنه ووایي او په خپله دې ولیکي.<br>څو زده کوونکي دې په کشرانو د مشرانو د مهربانی په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي، له کتاب پرته دې د مشرانو د درناوي په هکله |

| | |
|---|---|
| | خبرې و کړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست د زده کړې د ارزونې لپاره پوښتنې وکړئ، لکه:<br>د مشرانو درناوی څه ته وايي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کور کې د مشرانو خبرو ته د غوږ نيولو په هکله څوکرښې وليکي او په وروستي درسي ساعت کې دې په خپله خوښه کورنۍ دنده په ټولګي کې ووايي. |
| **اضافي معلومات** | په هره ټولنه کې مشران او سپين بږيري موجود وي اومشرانو ته پوره درناوی کيږي. مشرانو ډير عمر تيرکړي وي او د ډيرو زياتو تجربو خاوندان وي.<br>مشرانوته بايد درناوی وشي اود هغو له ښو تجربو څخه ګټه واخيستل شي. زموږ په هيواد کې که چيرې په کوم ځای کې دخلکو ترمنځ څه لانجې اوزړه بد والی راپيدا شي، نودواړه خواوې مشرانو اوسپين بږيرو ته مراجعه کوي او دواړه خواوې خپلې ستونزې ورته وايي اوهغوی ورته پريکړه کوي اودوی هم په هماغه پريکړه باندې باور او پريکړه کوي. په دې ډول ددواړو خواوو ترمنځ لانجه پای ته ورسيږي. له دې څخه دا څرګنديږي چې مشران په حقيقت کې دخپل کورکلي، سيمې اوهيواد ديووالی سره مينه لري اوپه خلکوکې دمينې اومحبت دزياتوالي سره مينه لري، نوپه موږ باندې لازمه ده چې له خپلو مشرانو سره مينه ولرو اوهغو ته درناوی ولرو.<br>يوازې دانه چې په خپلو کورونو کې خپلو مشرانو ته درناوی ولرو بلکې ټولو مشرانو ته درناوی ولرو، که کله په لاره ورسره مخ کيږو ورته سلام واچوو اوکه چيرې کينو بايد له مشرانو څخه لوړ اومخکې کيننو ځکه چې داکار زموږ په دود کې بې احترامي ده اوداسې کشران چې ترمشرانولوړ کيني او يا دهغوی په خبرو کې ناځايه اوله اړتيا پرته ورګډ شي داسې کسانوته بې ادبه ويل کيږي. لازمه ده چې موږ دمشرانو درناوی وکړو اوخبرې يې ومنو چې راڅخه خوشحاله اوسي.<br>په کوم کور اويا په کومه سيمه کې چې دمشرانو دخبرې منل نه وي اويا ورته درناوی ونه لري په داسې ځايونو او کورونو کې بې اتفاقي وي اودپرمختګ اوسرلوړی سببونه رامنځته کيدای نه شي . |

## شپږم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د ښه ملګري ټاکل** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کوونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- ښه ملګري به وپېژني.<br>- له ښو زده کوونکوسره به ملګرتیا وکړي.<br>- له ملګرو سره به یې مینه پیدا شي او ټولنیزه روحیه به یې رامنځته شي. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه ځوانګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسو په فکر د ښه ملګري ملګرتیا به څه ګټه ولري؟ |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته متن ورته ولولئ. له هغه وروسته په ځولایقو زده کوونکو باندې د لوست متن په وار سره ولولئ او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي او هر پاراګراف چې یې خوښیږي، هغه دې په کتابچوکې ولیکي او بیا د ې ځو کسه په ټولګي کې ولولي.<br>- یو زده کوونکی دې د لوست په مفهوم خبرې وکړي اونور دې ورته غوږ ونیسي. تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې بل ته دکتاب له مخې یو پاراګراف املا ووایي او هغه دې پر تختې ولیکي. نور دې د هغه تیروتنه ونیسي او سمه بڼه دې ولیکي.<br>- زده کو ونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې لغتونه معنا او بیا دې په جملو کې و کاروي:<br>اړ، ستونزه، مرسته، ملګرتیا، وخت، ژوند، ټولنیز<br>- یو زده کوونکی دې ووایي، که چیرې یوڅوک دوستان ونه لري، هغه ته به څه زیان ورسیږي؟ بل زده کوونکی دې ځواب ورکړي.<br>- وایي چې ښه ملګري په سختو وختونوکې پکاریږي، څو زده کوونکي دې مثال ووایي. که وخت وي، ښوونکي دې په خپله څو مهارتي فعالیتونه پرې کارکړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست په هکله څو پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- د ښو ملګرو درلودل به څه ګټه ولري؟ |
| **کورنۍ دنده** | یوشمیر زده کوونکي دې د ښه ملګري دګټو اویو شمیر دې دبدو ملګرو دتاوان په باره کې څو کرښې ولیکي. |

| | |
|---|---|
| **اضافي معلومات** | وايي چې د انسان پيژندل سخت کاردی او دکلونو کلونو تجربې ته اړتيا ده. دا خبره دا معنا لري چې بايد د يو ښه ملګري په پيدا کولو کې ډير کوښښ وکړو، ترهغه چې د ښه ملګري اويا ملګرو په پيدا کولو باندې کامياب شو.<br>په ټولګي او ټولنه کې له بيلابيلو خلکوسره مخامخ کيږو، نو ضروري ده چې له هغه چا سره ملګرتيا وکړو چې ښه مو ور باندې باور پيدا شي او بايد ور باندې ازميښت هم وکړو.<br>که له ښو سره کينو، ښه به زده کړو اوکه له بدو سره کينو، بد به زده کړو . له ښوخلکو سره ملګرتيا ښې پايلې لري او له بدوخلکو سره چلند او ناسته پاسته ناوړې پايلې لري. په لومړي ګام کې هغه څوک د ښې ملګرتيا وړ دي چې د ښو اخلاقو خاوند وي.<br>په ټولنه کې يوازې ژوند کول په حقيقت کې يوه رواني ناروغي ده. موږ بايد ټولنيز خصلت ولرو. له خلکوسره کينو، خبرې وکړو، تګ راتګ وکړو او په اجتماعي ځانګړنو پوه اوسو.<br>دلته ډيره مهمه داده چې له ښو ملګرو سره ملګرتيا ولرو. له ناپوهو ملګرو سره ژوند کول انسان له انساني لارې څخه کږوي او په ژوند کې له ډيرو بدبختيو سره مخامخ کيږي.<br>په شريعي لحاظ هم بايد له خلکوسره په غم اوښادۍ کې ګډون وکړو. له ښوخلکوسره راشه درشه وکړو. دا ځکه چې ښه دوستان ترخپلوانو ډير ژر له يو دوست سره مرسته کولای شي او همدغه ښه دوستان او ملګري دي چې د انسان په غم کې مرسته او ډاډ ګيرنه کولای شي او همدغه خراب ملګري دي چې خپلو ملګرو ته کندې کيندي.<br>که خپلې ټولنې ته ځير شو ډير مو اوريدلې اوليدلې دي چې د خرابو او نا اهلو ملګرو په واسطه ملګري وژل شوي، ناروا کارونو ته کش او په راز راز مصيبتونو اخته شوي دي، نه يوازې خپله بلکې کورنۍ هم ورسره په جنجالونو اخته دي او په ټولنه کې ټولنيز فساد هم رامنځته کوي. دا کارونه معمولا په هغه وخت کې شوي دي چې يو څوک د خپلې کورنۍ دمشر له اجازې پرته په خپل سر له هر چاسره ملګرتيا کوي او د هغو ملګرو کړو وړو او اعمالو ته نه ګوري اويا يې پلټنه نه کوي.<br>لازمه ده چې د ملګرو په ټاکلو کې له ډير احتياط څخه کار وا خيستل شي اوپه ملګرو يې کورنۍ هم خبره وي اويا خپله کورنۍ خبره کړي.<br>داسمه خبره ده چې انسان په ټولنه کې ژوند کوي اوبايد ټولنيز خصوصيات ولري. له يوبل سره ښې اودوستانه اړيکې ولري، له يوبل سره په مړي ژوندي کې تګ راتګ وکړي اوله يوبل سره په سختيو کې مرسته اوهمکاري وکړي، خودا هرڅه بايد له ښوخلکوسره وي، له نيکو خلکوسره وي اوداسې خلکو سره وي چې هغوی په هغه سيمه کې دښو خلکو په نوم سره شهرت ولري.<br>ترډيرې اندازې پورې په کورنيوپورې هم اړه لري چې بايد له خپلو اولادونو څخه خبرتيا ولري . |

## اووم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **ترافیکي لارښوونې** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- ترافیکي لارښوونې به وپېژني.<br>- ترافیکي لارښوونې به عملي کړي.<br>- دترافیکي لارښوونو له زده کړې اوعملي کولو سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څو انگیزوی پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسو په فکر د ترافیکي لارښوونو مراعاتول څه گټه لري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته لومړی تاسو اوبیا په لایقو زده کوونکو باندې ځوارې متن ولولئ او خپله مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او په خپله خوښه دې یوه یوه جمله چې یې خوښیږي، هغه دې په خپلو کتابچوکې ولیکي، بیا دې ځوتنه ولولي.<br>- یو زده کوونکي دې د ترافیکي نښو د زده کړې دگټو په هکله خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکی یا څو زده کوونکي دې د متن په مفهوم باندې خبرې وکړي اونور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکی دې د تختې مخې ته راشي. د ترافیکي نښونښانو د مراعاتولو په هکله د ې خپلو ټولگیوالو ته خبرې وکړي او نور دې ور ته غوږ ونیسي، تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ته پورته شي، پرتختې دې د کتاب له مخې څو لغتونه ولیکي، بل زده کوونکی دې پرخپله خو ښه تختې ته ورشي او په جملو کې دې وکاروي. بل زده کوونکی دې د هغه تیروتنه ووایي او پر تختې دې سمه کړي. |
| **د لوست ارزونه** | د لوست د زده کړې په هکله څو پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ترافیکي لارښوونې څه گټه لري؟ |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده** | یوه ډله زده کوونکي دې په سرک باندې د تیریدلو په هکله څوکرښې و لیکي. |
| **اضافي معلومات** | ترافیک یوه نړیواله او پیژندل شوې کلمه ده. په سرک باندې د نقلیه وسایطو، اشخاصو او حیواناتو تګ راتګ ته ترافیک وایي. ترافیک له درو برخو جوړ دي: انسان،لاره او نقلیه وسایط.<br>که له دې څخه یو نه وي، ترافیک نه بلل کیږي. که چیرې وغواړو چې له ترافیکي زیانونو څخه په امن کې پاتي شو، باید دغه درې واړه برخې په سمه توګه تنظیم شي. له ترافیکي زیانونو څخه د مخنیوي لارې چارې هم په ترافیک پولیسو، په سرکونو باندې په تلونکو کسانو او په هغو اشخاصو پورې اړه لري چې له نقلیه وسایطو څخه کار اخلي. له دې امله ټولو هیوادوالو ته لازمه ده چې په ترافیکی قوانینو پوه وي.<br>هغه کسان چې په سرکونو تیریږي، باید له ترافیکي قوانینو نښو او اشارو سره بلد اوسي، د بیلګې په توګه پلي خلک باید په لومړي ګام کې په پلي لاره ولاړ شي او که چیرې په ښارونوکې د سرک په غاړه پلې لاره نه وي، باید د سرک په غاړه ولاړ شي او ترافیکوته یې پام وي او له سرک څخه د تیریدلوپه وخت کې باید ښي او کیڼ خواته وګوري او په کراره له سرک څخه تیرشي.<br>په ښارونو کې د سرکونو په څلور لارو کې سیګنال څراغونه وي او نورې نښې نسانې وي، د سرکونو په زیاتو څلورو لارو او سرکونو کې ترافیک پولیس هم موجود وي چې له سرکونو څخه خلکو ته د تیریدلو لارښوونې کوي او سرغړوونکي په قانون سره جریمه کوي.<br>په اکثره پرمختللو هیوادونوکې ټولې لویې ترافیکي لارې د مخصوصو کمپیوټري کمرو پواسطه اداره کیږي او سر غړوونکو ته سزا ورکوي.<br>په افغانستان کې د ترافیکو تاریخ د امیر عبدالرحمان خان له وخت څخه راپیل شوی دی. په هغه وخت کې زموږ په هیواد کې موټر نه وو، د ترانسپورت کارونه به د اسونو، کچرو او فیلا نو پواسطه سرته رسیدل. د امیر حبیب الله خان (۱۲۹۸-۱۲۷۸) د واکمنی په وخت کې د سرکونو په جوړولوکار وشو او دوه موټرونه افغانستان ته راوستل شول . د امیرامان الله خان په وخت کې په هیوادکې په ترافیکي برخه کې پرمختګ رامنځته شو او ډیر سرکونه جوړ شول. په ۱۳۴۲کال کې د ترافیکو اداره جوړه شوه چې اوس دکورنیو چارو په وزارت کې د لوی ریاست په چوکاټ کې په کار بوخته ده.<br>زده کوونکو ته لازمه ده چې دوی له ترافیکي قوانینو سره بلد کړي ، تاسو ورته د ترافیکي قوانینو د مراعاتولو په برخه کې لارښوونې وکړئ او کولای شئ چې له سرک څخه تیریدل او په سرک را تیریدل ورته عملا وښیئ. |

**اتم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **له کتاب سره مینه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به دکتاب په ارزښت پوه شي.<br>- په درسي کتابونوکې راغلي لوستونه به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له کتاب لوستلوسره به يې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | د ځو انگیزوي پوښتنو په کولو سره لوست پیل کړئ، لکه:<br>ستاسو په اند د کتاب لوستل او لیکل څه گټه لري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته لو مړی تاسو اوبیا په ځو لایقو او پوهو زده کوونکو متن ولولئ او خپله ورسره مرسته وکړئ.<br>- اوس دې زده کوونکي متن په چوپ ډول ولولي او په خپله خوښه دې ځو کلمې په خپلو کتابچوکې ولیکي او بیا دې په جملوکې وکاروي او له هغه وروسته دې ځو تنه په ټولگي کې ولولي.<br>- زده کوونکي په ډلو وویشئ. هره ډله دې دکتاب دلوستونو په هکله نظر ورکړي او د هرې ډلې استازی دې په ټولگي کې ولولي.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ته پورته شي، بل زده کوونکی دې د کتاب له مخې ځو کلمې ورته وواییي او هغه دې پرتختې ولیکي. بیا دې په جملو کې و کاروي، نور زده کوونکي دې په وار سره د هغه تیروتنه ونیسي. د نیوکې کوونکی دې تختې راشي، په خپله دې و لیکي او بیا دې و لولي.<br>- یو زده کوونکی دې د هغه کتاب نوم ولیکي چې کله يې مطالعه کړی وي. بیا دې نوموړی کتاب په جمله کې وکاروي او پرتختې دې ولیکي.<br>- زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې لاندې کلمې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي. بیا دې ځو تنه نوموړې جملې پر تختې ولیکي.<br>- یو زده کوونکی دې پرتختې مخکینی لیکل شوي جمله ولولي.<br>- که وخت و، تاسو په خپله خوښه د پورته په ډول د لیکلو او لوستلو فعالیتونه په زده کوونکو سرته ورسوئ. |

| | |
|---|---|
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله څو پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- د کتاب لوستل څه ګټه لري؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د کتاب لوستلو د ګټو په هکله څو کرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | کتاب هغه ټولګه ده چې په هغه کې دژوندانه په بیلابیلو برخو کې مطالب لیکل شوي وي او په لوستلوسره یې دانسانه په سلوک کې بلونونونه رامنځته کیږي. هغه څو ک چې له کتا ب سره مینه لري او مطالعه کوي یې، دهغه په شخصیت کې بدلونونه رامنځته کیږي او دژوندانه په سختولارو کې ځانته لاره بیدا کوي.<br>کتاب دانسان ښه ملګری دی، خو پدې شرط چې داسې ښه کتاب و ي چې له مطالعه کوونکي سره مرسته وکړي او په ګټه یې تمام شي.<br>لکه څنګه چې کتاب مهم دی، په هماغه اندازه د کتاب ساتل مهم دي. د کتاب په لیکلو او چاپولو باندې ډیر کار کیږي او ډیرې پیسې پرې مصرف کیږي، نو له دې امله په دولتي او شخصي ډول د کتابونو دساتلو لپاره کتابتونونه جوړیږي او په هغوکې کتابونو ساتل کیږي. موږ په هیواد کې په دولتي کچه دکلتور وزارت په چوکاټ کې دعامه کتابتونونو ریاست لرو چې په چوکاټ کې یې په مرکز او ولایتونو کې کتابخانې لرو. په دغه ډول په وزارتونوکې هم کتابتونونه شته چې دوزارتونو له کتابتونوسربیره دکابل پو هنتون د کتابتون، د افغانستان دعلومو داکاډمۍ د کتابتون، دافغانستان بانک د کتابتون او دداسې نورو یادونه کولای شو.<br>دغه راز د اطلاعاتو او کلتور وزارت په مرکز او ولایتونوکې کتابتونونه لري.<br>په هیواد کې په شخصي ډول هم دیوشمیرلیکوالو په کورونو کې داسې شخصي کتابتونونه شته چې په هغو کې نایابه کتابونه او قلمي نسخې وجود لري.<br>د کتابونو په درلودلو کې ډیره مهمه داده چې هم باید کتابونه سم او ښه وساتل شي او هم باید مطالعه شي او ګټه ترې واخیستل شي. له دې امله چې کتاب ډیر ارزښتونه لري، په نړۍ کې داپریل **۲۳**نیټه د کتاب د نړیوالې ورځې په توګه نومول شوي ده. دا ورځ د لومړي ځل لپاره په **۱۹۹۵**کال کې ولمانځل شوه.<br>کتابونه د علمي نړۍ دروازه بلل کیږي. ټول علوم د کتاب په واسطه خپریږي او له یوه نسل څخه بل نسل ته پاتې کیږي او ترې کار اخلي، ځکه خو زموږ په ځوانانو لازمه ده چې د کتابونو مطالعې ته زیات وخت ورکړي. علم او پوهه ترلاسه کړي او په شخصیت کې مثبت بدلونونه راشي. |

**نهم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت**: **د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د ځان او کاليو پاک ساتل** |
| **د زده کړې موخې**:<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د ځان او کاليو د پاک ساتلو ارزښت به وپيژني.<br>- خپل ځان او کالي به پاک وساتلای شي.<br>- له پاکوالي سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | د لوست د ارزونې په خاطر ځو انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- مکروبونه په انسانانو کې څه شی رامنځته کوي.<br>- |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته لومړی تاسو اوبيا په ځو لايقو زده کوونکو متن په وارسره ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- زده کوونکي په ځومناسبو ډلو وويشئ. هره ډله دې د ځان پاک ساتلو د گټو په هکله ځو جملې په شريکه وليکي او بيا دې يو استازی په ټولگي کې ووايي.<br>- يو زده کوونکی دې په وار سره د پاکو کاليو په باره کې يوه جمله وليکي او بل زده کوونکی دې په همدې باره کې بله جمله وليکي او ودې وايي.<br>- يو زده کوونکی دې د ځان او کاليو د نه پريمنځلو د زيان په باره کې يوه جمله پرتختې وليکي او بيا دې ولولي بيا دې بل زده کوونکی پورته شي په خپله خوښه دې يوه جمله وليکي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي، په خپله خوښه دې کلمې وټاکي او په جمله کې دې وکاروي او بيا دې ځو تنه په ټولگي کې ولولي.<br>- يو يا ځو زده کوونکي دې د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي.<br>- يو زده کوبونکی دې ووايي چې په څه ډول د استوگنې ځايونه پاک وساتو؟<br>ځو زده کوونکي دې د کتاب متن ووايي. |
| **د لوست ارزونه** | د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه: زموږ د اوسيدو ځايونه د څه په نوم ياديږي؟ |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د ځان پاک ساتلو د ګټو په هکله څوکرښې په خپلو کتابچو کې وليکي. |
| **اضافي معلومات** | پاکوالی د ايمان يوه برخه ده. لازمه ده چې خپل ځان، کالي او د استوګنې ځايونه پاک وساتو. که چيرې خپل پاکوالي ته پام ونه کړو، وجود ته راز راز مکروبونه دننه کيږي او په ساري او غيرساري ناروغيو باندې د اخته کيدو زمينه برابريږي چې بيا تر ډيره دانسان د ځوريدو سبب او ان چې د مرګ سبب هم کيږي.<br><br>يو شمير ناروغۍ دککړو او خوسا شوو خوراکي موادو له خوړلو څخه رامنځته کيږي او يا خو وجود ته د خان، کاليو او داستوګنې دسيمې له ناپاکی څخه چې مکروبونه وجود دننه شي، رامنځته کيږي. کيدای چې وجود ته د مکروبونو ننوتل سمدلاسه اغيزه ونه کړي، خو مکروبونه تر ډيره په وجود کې پاتې کيږي. کله چې وجود کمزوری شي، د ناروغۍ نښې رامنځته کيږي. دغه ډول که انسان خپله صحي برخې ته پام ونه کړي، کيدای شي چې په ساري ناروغيواخته شي او بيا له ده څخه دکورنۍ نورو غړو ته ورسيږي.<br><br>وايي چې وقايه ترتداوی ډيره ارزانه اوبهتره ده. هغه کسان چې تل دخپلو ځانونو ،کاليو پاکوالي ته پاملرنه کوي اوهغه پاک ساتي اودغه راز دخپلو کورونو دپاکوالي په برخه کې کوښښ کوي ويلا ی شو چې داسې ځايونوته مکروبونه سرايت کولای نشي اوپه پايله کې دمکروبونو مخه نيول کيږي.<br>که يوڅوک ناروغه شي دهغه دناروغۍ په تداوی باندې نه يوازې داچې ډير لګښتونه راځي بلکې له نوموړي ناروغ سره دکورنۍ ډير غړي له کاره ووځي اوپه تداوی کې يې ور سره مرسته کوي اودا هم ډير امکان لري چې ناروغي يې له يوه شخص څخه دکورنۍ بل غړي ته هم وليږديږي. ديوه ناروغ کس دبې احتياطی له امله نورې کورنۍ اوخلکوته زيان رسيږي، نوښه داده  چې زموږ ګران هيوادوال اوپه تيره بيا زموږ درانه زده کوونکي چې دغه ټکي ډيره پاملرنه وکړي .<br>په اوس وختونو کې  چې ګورو له يوې  خوا دخلکو ترمنځ اړيکې زياتې شوي ، تګ راتګ زيات دی اوله بلې خوا چاپيريال هم لکه څنګه  چې لازمه ده پاک نه دی اوپه ناپاک چاپيريال کې دمکروبونو دراپيداکيدو او ودې لپاره ډيره ښه زمينه برابريږي چې يکې وده وکړي،نوپه داسې حالاتو کې دمکروبونو دليږديدنې لپاره ښه زمينه برابريږي .<br>له دې امله ښايي چې هم ځان پاک وي، هم کالي پاک وي اوهم دکور په پاکوالي کې زيار وايستل شي اوله دې سره سم بايد دخپل ماحول پاکوالي ته پاملرنه وشي. |

**لسم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د زده کوونکو مسؤولیتونه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به خپل مسؤولیتونه وپیژندلای شي.<br>- خپل مسؤولیتونه په سرته ورسولای شي.<br>- د خپلو مسؤولیتونو له سرته رسولوسره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انگیزوي پوښتنې وکړئ. |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته که زده کوونکي دمتن په لوستلو کې کمزوري ښکاریدل، تاسې یې یوځل ورته په مناسب اواز سره وواییئ. بیا په څو زده کوونکو متن ولولئ، ورسره مرسته وکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې پرتختې دوه کلمې د کتاب له مخې ولیکي او بل دې په جملو کې وکاروي. دریم دې د جملې تیروتنه ونیسي. که یې ستونزه درلوده هغه دې پرتختې ورته سمه کړي.<br>- څوتنه دې د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي.<br>- څو زده کوونکي دې د مسؤولیت د سرته نه رسولو په هکله خبرې وکړي، څو مثالونه دې ور کړي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.<br>- اوس دې زده کوونکي د کتاب له متن څخه څو نوي لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په جملو کې و کاروي.<br>- څو زده کوونکي دې په ټولگي کې د ښه چلند په هکله خبرې وکړي .<br>یو زده کوونکی دې تختې ولاړشي، په خپله خوښه دې یوه جمله ولیکي، بل زده کوونکی دې یوه بله جمله ور باندې ور زیاته کړي. بل زده کوونکی دې یوه بله جمله ورباندې ور زیاته کړي.<br>- دوه فعالیتونه دې ښوونکی په خپله خوښه ور باندې سرته ورسوي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- د زده کوونکو مسؤولیت څه شی دی؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکی دې په کور کې د زده کوونکي د مسؤولیت په هکله څوکرښې ولیکي. |

| | |
|---|---|
| زموږ ټولنه  یوه وروسته پاتي ټولنه ده چې دژوندانه په هربرخه کې کمزوري یو اولکه څنګه چې لازمه ده پرمختګ موکړی نه دی .<br>زموږ دهیواد ټولې طبیعي شتمنۍ لا تراوسه پورې په خپل حال لاس نه خوړلې پاتي دي. دښتې مو لاتر اوسه پورې ابادې شوي نه دي . مالدارې اودمالداری محصولات مو هم په عصري ډول شوي نه دي.یعنې که دژوندانه په هر برخه کې سترګې واچوو، دابه راته څرګنده شي چې موږ دخپل هیواد دابادولو لپاره د ډیر مسؤولیت دسرته رسولو اوکار کولوله پاره اړتیا لرو.<br>که موږ دنړۍ پرمختللو هیوادونو ته وګوروچې دژوندانه په هربرخه کې یې پرمختګ کړی دی دا هرڅه له دې امله دي چې هغوزیاړاو زحمت ایستلی دی اوداکار دا غواړي چې ځوانان دعلم اوپوهې په ګاڼه باندې ځانونه سنبال کړي اوخپل مسؤولیتونه سرته ورسوي.<br>په ټولنه کې هرڅوک که نارینه وي اوکه ښځینه وي، دخپل موقف په اندازه ځانګړي مسؤولیتونه لري اوهغه باید سرته ورسوي، خوترټولو ځوانانو ته ګوته ډیره نیول کیږي چې خپل مسؤولیتونه وپیژني اوهغه په خپل وارسره سرته ورسوي.<br> اوس ددې وخت دی چې زموږ زده کوونکي له همدې اوس څخه په  خپلو درسونو کې زیار وباسي، کوښښ وکړي اولوړې زده کړې وکړي چې دهیواد دابادۍ له پاره په بیلابیلو برخودکارکولو له پاره جوګه شي.<br>موږ دمخه وویل چې په ټولنه کې هرڅوک دخپل موقف په اندازه سره مسؤولیت لري. اوس دزده کوونکو مسؤولیت دادی چې علم اوپوهه زده کړي اوپه  راتلونکي وخت کې دخپل کور اوټولنې دجوړولو لپاره په پښو ودریږي.<br>دا کاریوازې دنارینه وو نه دي بلکې انجونې او ښځې هم باید دخپل هیواد په جوړولوکې برخه واخلي اوله نارینه ورونوسره یوځای اوږه په اوږه زده کړه وکړي اوخپل هیواد ودان کړي.<br>خوترډیره پورې په کورنیو پورې هم اړه لري چې دخپلو اولادونو په روزنه او په خپل مسؤولیت باندې دهغو ی دپوهولو په برخه کې زیار وباسي اوټل دخپلو اولادونو دزده کړې په برخه کې زمینه برابره کړي او دخپلو  اولادونو دزده کړې له تعلیمي مرکزونو سره په ارتباط کې اوسي.<br>  که چیرې په یوه ټولنه کې دمسؤولیت دسرته رسولو له پاره احساس موجود نه وي اوهرڅوک لکه څنګه چې زړه یې وغواړي، ژوند کولوته زړه ښه کړي، نو په داسې ټولنه کې به هیڅکله  دپرمختګ اویووالي څرکونه رامنځته نشي او داسې ټولنه به تل له بد بختۍاووروسته پاتي والي سره مخ وي.<br>نوپه داسې حالاتوکې لازمه ده چې دټولنې ټول اوسیدونکي که نارینه وي اوکه ښځینه وي دخپلو مسؤولیتونوپه سرته رسولوکې ونډه واخلي اوخپل کارونه په خپل وخت سرته ورسوي اودسباپه اوږو یې وانه چوي. | **اضافي معلومات** |

## يوولسم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د کور په کارونوکې مرسته** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کوونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د کور په کارونو کې به له خپلې کورنۍ سره مرسته کول وپيژندلای شي.<br>- د کور په کارونو کې به له خپلې کورنۍ سره مرسته وکړي.<br>- د کور په کارونو کې به له مرستې سره علاقمند شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | لوست ته د زده کوونکو د متوجې کولو لپاره څو انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه: تاسو کله له خپلې کورنۍ سره مرسته کړې ده؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | – له مقدماتي فعاليتونووروسته لومړی تاسو اوبيا په څو زده کوونکو باندې متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي. تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>– زده کوونکي دې لاندې کلمې په خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروي او بيادې يو زده کوونکی هماغه جملې پرتختې وليکي:<br>ستړيا، لمونځ، مور،پلار، حقوق، کارونه<br>– څو زده کوونکي دې پرتختې د مرستې دگټې په هکله څوجملې وليکي او بل زده کوونکی دې ولولي. که څه تيروتنه يې کړې وه، هغه ورته د يو زده کوونکي پواسطه سمه کړئ.<br>– زده کوونکي په څو ډلو وويشئ او هره ډله دې د مرستې په هکله خپل نظر ورکړي او بيا دې د خپل استازي پواسطه ووايي.<br>– ځو زده کوونکي دې د مرستې په هکله خبرې وکړي چې په تيرلوست کې يې خبرې کړي نه وي.<br>– زده کوونکي دې لاندې نيمگړې جملې په خپلو کتا بچو کې پوره کړي.<br>– يو زده کوونکی دې د کتاب له مخې يوه نيمگړې جمله پرتختې وليکي بل داوطلب زده کوونکی دې پوره کړي.<br>که وخت و، تاسو څو مهارتي او ذهنيتي فعاليتونه پر زده کوونکوسرته ورسوئ. |
| **د لوست ارزونه** | د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه: زده کوونکي له مور او پلار سره له مرستې پرته نورکوم کارونه سرته رسوئ. |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د لوست لنډیز په خپلو کتابچوکې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | که یوکورپه پام کې ونیسو اوبیا ټولنې ته وګورو، لیدل کیږي چې دټولو دکارونو په سمه توګه سرته رسیدل له یوبل سره مرسته کوي اوپه پایله کې دټولو دسوکالۍ اوارامۍ له پاره زمینه برابریږي او دبري سبب کیږي.<br>کور دیوې ټولنې هغه لومړنۍ هسته ده چې ورو ورو په ټولنه بدلیږي، نو باید دمسؤولیت په منلو سره هر څوك په کورنۍ کې له یوبل سره لاس وکړي او داځکه چې ټول کارونه له یوبل سره اړیکې لري.<br>په کورنې چې پلار، مور، وروڼه اوخویندې ژوند کوي اویا په لویو کورنیوکې چې نږیندې اولمسیان وي، دوی ټول په مجموع کې یوه کورنۍ جوړوي او په کورنۍ کې باید داسې ونه شي چې نارینه ووایي چې داکار خو په ما پورې مربوط نه دي دا د ښځو کار دی اویاداچې ښځې ووایي چې داکار خو په نارینه وو پورې مربوط دی .<br>لازمه ده چې په کورکې له یوبل سره دمرستې روحیه پیاوړې وي او له یوبل سره په کارونو کې لاس ورکړي اوکارونه په سمه توګه سرته ورسوي.<br>موږ ګوروچې په دې دودیزه ټولنه کې د کور کارونه ښځو ته ور سپارل شوي دي اویوشمیر نارینه وایي چې دا خودمیرمنو کاردي اوپه کورکې په کارونو کولوشرمیږي. دکور په کارونوکې ورسره لاس نه کوي. داکارسم نه دی. په دې کارسره کورنۍ نیکمرغه کیدای نشي.<br>نارینه وو ته لازمه ده چې دخپلوکارونو ترڅنګ په کورونو کې هم له خپلو میرمنوسره په کارونو کې مرسته وکړي اوداسې ونه وایي چې داکار په ماپورې اړه نه لري.<br>که زده کوونکي له ښوونځي څخه کورته راشي اود مور لاس بند وي په کور کار بوخت وي لازمه ده چې ګران زده کوونکي ورسره مرسته وکړي.<br>دکورکارونه باید یوازې میرمنو ته خاص نه کړو باید چې هلکان او انجونې هم دکورپه کارونو کې برخه واخلي.<br>زموږ په ټولنه کې داسې دود دی چې وایي ښځې اوانجونې باید دکور کارونه وکړي اونارینه باید له کور څخه بهرکارونه سرته ورسوي اویا داچې یوشمیرکسان وایي انجونې ښوونځي څه کوي داخو دنارینه وو کار دی. دامفکوره سمه نه ده.<br>کورمشترك دی او کارونه یې هم مشترك دي او باید په شریکه سرته ورسیږي. ښځې باید دکور له څلور دیوالونو څخه راووځي زده کړه وکړي اود ژوندانه په بیلا بیلو کې له نارینه وو سره دخپل توان په اندازه سره کار و کړي اوخپل هیواد ته دخدمت جوګه شي اودهیواد اوخلکو په وړاندې خپل ور سپارل شوي مسؤولیتونه سرته ورسوي. |

**دولسم لوست**

**د تدريس لارښود پلان**

**د تدريس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د زده کوونکو ترمنځ ښې اړيکې** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به د زده کوونکو ترمنځ ښې اړيکې وپيژندلای شي.<br>- له يو او بل سره به ښې اړيکې رامنځته کړلای شي.<br>- له ښو او دوستانه اړيکو سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | لوست ته د زده کوونکو د تيارى لپاره څو انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسو په فکر له يو بل ښه چلند اوښې اړيکې څه گټه لري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته لومړی تاسو اوبيا په هغو زده کوونکو چې تراوسه يې متن لوستی نه دی، متن ولولئ اونور دې ورته غوږ شي.<br>- څو زده کوونکې دې د متن په باره کې خبرې وکړي.<br>- زده کوونکي په ډلو وويشئ. هره ډله دې د ښو اړيکو په هکله يوه يوه جمله ووايي او يو تن دې وليکي بيا دې هماغه استازی د تختې پرمخ وليکي.<br>- يو زده کوونکی دې له بل څخه د ښو اړيکو په هکله پوښتنه وکړي او بل دې ورته ځواب ورکړي. ښوونکي دې ورته لارښوونه وکړي.<br>- يو زده کوونکی دې پرتختې وليکي (ښې اړيکې) نور زده کوونکي دې په دې هکله يوه يوه جمله وليکي او بل زده کوونکی دې بيا ولولي.<br>- يو زده کوونکی دې پرتختې دوه جملې وليکي چې تش ځايونه ولري. نور زده کوونکي دې دوه ډلې شي. هره ډله دې يوه جمله په خپلو کتابچو کې پوره کړي. بيا دې يو زده کوونکی پرتختې هغه دواړه جملې پوره کړي. که چا تيروتنه کړې وي، هغه دې په خپلو کتابچو کې سمه کړي.<br>- څو زده کوونکي دې د ښو اړيکو د گټو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- څو زده کوونکي دې له نورو زده کوونکو سره د خپلو ښو اړيکو په هکله خبرې |

| | |
|---|---|
| | وکړي.<br>- یو زده کوونکی دې ووایي چې له چاسره څه ډول ښې اړیکې لري، خبرې دې وړباندې وکړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- که چیرې له یو بل سره مخامخ شئ، څه کوئ؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د غیر دوستانه اړیکو د زیان په هکله څو کرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | که له کورڅخه راو نیسو او بیاټولنې ته سر ور دننه کړو و به ګورو چې د ټولو وګړو ترمنځ په کارونو کې پرمختګ دښو اړیکوپه اساس منځته راځي. که چیر ې دګړو تر منځ ښې اړیکې نه وي، اوهرڅوک په خپل سر وي اوله چا سره ښې اړیکې ونه لري ، له یو بل سره مرسته نه وي ، په داسې کوراویا ټولنه کې دپرمختګ نښې رامنځته کیدای نه شي.<br>ښوونځي هم په حقیقت کې یوه ټولنه ده چې په هغې کې ښوونکې اوزده کوونکي اود ښوونځي نور کارکوونکي کار کوي، خو په دې ټولوکې بیا زده کوونکي له یو بل سره ډیرې نږدې اړیکې لري اوتل په کارونو کې یوبل ته اړ اومحتاج دي.<br>زده کوونکي یوله بل سره باید دوروښو په څیر ژوند وکړي اویوله بل سره باید مرسته اوهمکاري وکړي.<br>یوشمیر کسان به ووایي چې زده کوونکي به له یو بل سره څه مرسته وکولای شي؟<br>داسې نه ده .زده کوونکي خو باید په اول کې له یو بل سره دوستا نه اړیکې ولري او بیا د همدغو دوستانه اړیکو په شته والي کې کولای شي له یوبل سره د لوستونو په زده کړه کې مرسته وکړي. له یوبل سره دکورنۍ دندې په لارښونه کې مرسته وکړي اودغه راز له یوبل سره دکتاب، قلم ،کتابچې اونوټونو په ورکولو کې مرسته وکړي.<br>کیدای شي چې په یوه ټولګي کې یوشمیر زده کوونکي داوریدلو په برخه کې کمزوري وي اویا یو شمیر کسان دلیدلو په برخه کې ستونزې ولري، نور زده کوونکي کولای شي ورسره مرسته وکړي. لوست ورسره ووایي اوهغه ورسوي .<br>یوشمیر زده کوونکي چې په زده کړه کې کمزو ري وي له هغو سره په زده کړه مرسته وکړي اولوستونه ورسره تکرار کړي چې بله ورځ په ټولګي کې دښوونکي دپوښتنو لپاره تیاروي.<br>په ټولګي کې یوشمیر داسې زده کوونکي هم وي چې زړور نه وي له ښوونکي څخه دپوښتنې کولو زړورتیا پکې نه وي، دغه زده کوونکي ورو ورو د لوستونو تربار لاندې کیږي اوپورته کولای یې نشي، نوښه داده چې په ټولګي زده کوونکي هم له داسې ملګرو سره لوستونوکې مرسته وکړي. ښوونکی هم باید داسې زده کوونکو څخه هر وخت پوښتنه وکړي اوپه ټولګي کې دلوستلو اوځواب ورکولو لپاره پورته کړي. |

**دیارلسم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د بست کلا** |
| **د زده کړې موخې:** **پوهنيزې** **مهارتي** **ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي: <br> - د بست د کلا تاريخي لرغونتوب به و پيژندلای شي. <br> - د بست کلا په هکله به خبرې وکړای شي او خپلې خبرې به وليکلای شي. <br> - د بست کلا له ارزښت او له نورو تاريخي اثارو سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوټر او پروجکټور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څو انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه: <br> ستاسو په فکر د بست تاريخي کلا به چيرې وي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونو وروسته لومړی تاسواوبيا په څو زده کوونکي دې متن ووايي او نور دې ورته غوږ ونيسي. <br> - يو زده کوونکی د بست د تاريخي کلا نوم پرتختې وليکي. اوس دې څو زده کوونکي د هغې تاريخي کلا په هکله يوه يوه جمله ووايي اوپرتختې دې وليکي. <br> - اوس دې نور زده کوونکي ورته وگوري او تيروتنه دې ورته سمه کړي. <br> - څو زده کوونکي دې د بست د تاريخي کلا په هکله يوه جمله ووايي او نور دې ورته غوږ ونيسي. <br> - څو زده کوونکي د بست د تاريخي کلا په ارزښت خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونيسي. <br> - زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي: <br> غزنوي پاد شاهان به ....... کې د هلمند بُست ته تلل. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه: <br> - د بست کلا په کوم ځای کې جوړه شوې ده؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي د تاريخی اثارو د ګټو په هکله څوکرښې وليکي. |
| **اضافي معلومات** | هلمند د هيواد له تاريخی ولايتونوڅخه دی. په دې ولايت کې د هيواد دوه نامتو سيندونه هلمند او ارغنداب سره يوځای کيږي. په هلمند کې يوه لرغونې تاريخي کلاشته چې دا کلا د بُست په نامه ياديږي، دا کلا ځانگړی شهرت لري. پخوا به ددغې کلا دليدلو لپاره د نړۍ سيلانيان راتلل. |

| | |
|---|---|
| غزنوي پاد شاهان به په ژمي کې د هلمند بُست ته تلل. دا ښار چنګېز او تېمور وسوځاوه چې اوس مهال د بُست د ښار يواځې يوه دروازه اباده پاتې ده . دا دروازه په ډېر مهارت او ښکلې بڼې جوړه شوې ده چې شته والی يې زموږ د تاريخي اثارو لويه برخه جوړوي. د نوموړي کلا د جوړيدو د تاريخ په هکله بيلا بيل نظريات دي. نوموړې کلا ډير لرغونی تاريخ لري او تر اسلام دمخه په پوره مهارت سره جوړشوي ده.<br>د نوموړي کلا ديوالونه دومره پلن وو چې پر نوموړو د يوالونو باندي آسانو، ګاډيو او سرتيرو د کلا له يو کونج نه بل کونج ته تګ او راتګ کاوه. د کلا مخ ته د نړۍ د عجايبو نه يو ډير غټ کمان دی چې دومره غټ کمان د نړۍ په تاريخي اثارو کې نه دی ليدل شوی، اوس هم دا کمان روغ رمټ ولاړدی او سيلانيان سيل ته ورځي. دا کلا خپلې قصې او داستانونه په پټه خوله خلکو ته بيانوي. د لرغوني افغانستان د تاريخونو د پاڼو په لوستلو سره دا څرګنديږي چې بست د افغانستان د هغه وخت يو ډير مشهور او ستراتيژيک ځای و. له يوې خوا بُست د دوو سيندونو په مينځ کې موقعيت درلود، بل دا چې د وريښمو مشهوره لار وه يعنې دا چې ايران، هندوستان، چين او ځينو عربي هيوادونو له همدې لارې خپلې سوداګريز چارې پرمخ بيولې. هغه وخت په بُست کې ډير لوی سمسور باغونه، ډيرې لويې تجارتخانې، کاروانسرايونه او بازارونه جوړې شوي وو. د افغانستان د نورو سيمو نه خلک د کار او ژوند لپاره دې سيمې ته راتلل، خو د جګړو له امله چې د پاچايانو په مينځ کې يو عادي کار او عادت و، د بُست کلا او د هغه دبدبه د يرغلګرو لخوا له خارو سره برابره شوه، خو وروسته يوځلې بيا د سلطان محمود غزنوي او د هغه د اولادې په وخت کې د بُست خواته پاملرنه وشوه.<br>ماخذ: ويکيپيديا | |

**څوارلسم لوست**

**د تدريس لارښود پلان**

**د تدريس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د بې اتفاقۍ پايلې** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به د بې اتفاقي ناوړه پايلې وپيژندلای شي.<br>- متن به ولوستلای او وليکلای شي.<br>- له اتفاق او يووالي سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يوكسيز، دوه كسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څو انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر اتفاق به څه گټه ولري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته تاسو ورته متن ولولئ اووروسته په څو زده كوونكو متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي او هر يو دې يو بيت خوښ کړي اوڅوکسه دې پرتختې وليکي اونور دې د هغه تيروتنه ونيسي.<br>يوه ډله دې د بې اتفاقۍ په هکله او بله ډله دې د يو والي او اتفاق په هکله خپل نظرونه شريک او يواستا زی دې وليکي.<br>- څو زده کوونکي دې د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي چې پخوايې برخه اخيستي نه وي.<br>- يو زده کوونکی دې تختې ته ولاړ شي او پرتختې د بې اتفاقۍ کلمه وليکي، څو زده کوونکي دې د بې اتفاقۍ په هکله يوه يوه ناوړه پايله ووايي او هغه دې پرتختې وليکي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي اوله متن څخه دې څوکلمې راوباسي اوپه جملوکې دې وکاروي.<br>- يو زده کوونکی دې له بل څخه پوښتنه وکړي او هغه بل دې ورته ځواب ورکړي.<br>که وخت و تاسو نور ورته فعاليتونه پرې سرته ورسوئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- قيام الدين څوک اودکوم ځای و؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د لوست متن په ښکلي ليک په خپلو کتابچو کې وليکي. |

پنځلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

**د تدریس وخت:** **د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **چاپېریال پاک ساتل** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کوونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د چاپېریال ارزښت به وپېژندلای شي.<br>- د چاپېریال په هکله به خبرې وکړای شي.<br>- له چاپېریال ساتلوسره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوټر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو انګیزوي پوښتنې وکړئ:<br>ستاسو په نظر د چاپېریال پاک ساتل به څه ګټه ولري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته متن ورته ولولئ وروسته په زده کوونکو متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي، په خپله خوښه دې یو پاراګراف وټاکي اوڅوتنه دې پرتختې ولیکي.<br>- څو زده کوونکي دې د متن د مفهوم په هکله خبرې وکړي اونور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- د لاندې جملو تش ځایونه دې په مناسبو او سمو کلمو سره ډک کړي.<br>الف: هر هغه څه چې ستاسو په شاوخوا کې دي ستاسو چاپېریال ________. ( و، کړ، دی )<br>ب: ستاسو چاپېریال پرتاسو ډېرې اغېزې ________. (لري، کړي، درلود )<br>د: د محیط ساتنه د ټولو خلکو دنده ________. ( دی، ده، وي )<br>- زده کوونکي دې د ناپاک چاپېریال د زیانونوپه هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- که څوک خپل چاپېریال پاک نه ساتي، له داسې کسانو سره څه وکړو؟ په دې هکله دې څوکسه خبرې وکړي.<br>- څوزده کوونکي دې پرتختې د هغه څه په هکله یوه یوه جمله ولیکي چې په چاپېریال کې شاملیږي.<br>پوښتنې<br>الف: چاپېریال څه ته وايي؟ ب: د چاپېریال د ککړتیا علت څه |

| | |
|---|---|
| | دی؟<br>ج: په بېکاره یا فضله موادو څه وکړو؟ د: د چاپېریال ساتنه د چا دنده ده؟<br>- یو زده کوونکی دې پرتختې د چاپیریال کلمه ولیکي او بل دې د هغې په هکله یوه یوه جمله ووایي او هغه زده کوونکی دې پرتختې ولیکي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- څنگه کولای شو خپل چاپیریال پاک وساتو ؟<br>- قیام الدین څوک او دکوم ځای و؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې د چاپیریال د ښه ساتلو په هکله څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | - د انساني ژوند په هوساینه کې پاک او سمسور چاپیریال ډېر ارزښت لري. هوا، اوبه، خواړه، ونې بوټي، ځنگلونه. کروندې، چمنونه، ورشوگانې غرونه، دښتې، ژوي، مرغان او نور د چاپیریال په نامه یادیږي. د چاپیریال واکمن انسان دی یعنې خدای(ج) د چاپیریال توکي د انسانانو د هوساینې او گټې اخیستنې لپاره پیداکړي دي.<br>- چاپیریال د انسانانو ترمنځ شریکه پانگه ده له چاپیریاله ټول انسانان گټه اخلي او په ټولو وگړیو پورې اړه لري، نو ټول وگړي یې باید په ساتنه او ژغورنه کې ونډه واخلي.<br>- له چاپیریال څخه انسان ته هوا، اوبه، خواړه، جامې، استوگنځی او د ژوندانه د اړتیا وړ توکي برابریږي. له همدې امله انسان اړ دی چې د چاپیریال په پاک ساتنه، ژغورنه اوښېرازۍ کې د مسؤولیت له مخې هراړخیزې هڅې وکړي. داسې عمل ونه کړي او داسې څیزونه تولید نه کړي چې چاپیریال ته زیان رسوي، که دغه توازن ونه ساتلی شي انساني ژوند نااراموله شي.<br>ناپاکه چاپیریال اوو‌ژونکي توکي د انسان د له منځه وړلو او روغتیایي ستونزو د رامنځ ته کولوسبب کیږي او په پای کې انساني ټولنه د بدمرغۍ اوتباهۍ لورته بیولا ی شي.<br>- د ټولنې هر انسان ته لازمه ده چې د خپل چاپیریال په ساتنه او پاکوالۍ کې خپلې هڅې ونه سپموي.<br>د چاپېریال ساتنې په اړه د ډېرو هیوادونو تر منځ تړونونه لاسلیک شوي او هر هیواد د هغو په عملي کولو باندې موظف شوی دی.<br>نن سبا د نړۍ د ښوونې او روزنې په سیستم کې د ژوندانه د چاپېریال ارزښت د اکثرو هیوادونو د ښوونیز نظام له ارزښتونو څخه یو ارزښت گڼل کیږي. په احادیثو کې د ونو، بوټو کښېنول، ساتنه او د ښاروو ځمکو د ودانولو ارزښت، خیر او ثواب او د دنیا او اخرت گټې ښودل شوې او د چاپېریالي کړکېچ د مخنیوي په باره کې لارښوونې شوې دي.<br>د نفوسو د زیاتوالي له امله نن سبا د چاپیریال ککړتیا په نړۍ کې ډیر گواښونه رامنځته کړي او د چاپیریال ستاتنې توازن یې له منځه وړی دی. |

| | |
|---|---|
| د ځیرنو په اساس هر کال په ټوله نړۍ کې لږ تر لږه دري میلونه وګړي د ککړ چاپیریال له لاسه خپله ساه ورکوي چې په دې کې (٪۹۰) سلنه په پرمختللیو هېوادونو او نور مخ په وده او وروسته پاتې هېوادونو کې شتون لري.<br>د ناپاکه چاپیریال ګردونه اولوګي انسان ته د زیاتو ناروغیو د رامنځته کیدو سبب کیږي. موږ ته لازمه ده چې د ونو، ګلانو او بوټو په کینولو او د امکان ترحده د هغو په روزلوسره خپل چاپیریال پاک وساتو او هم له اقتصادي پلوه له ځان او ټولنې سره مرسته وکړو. دغه راز د صحي اوبو د شته والي په برخه کې کار وکړو. د چاپیریال د پاک ساتلو او جوړولو کار نه یوازې د اشخاصو بلکې د دولت دنده هم ده چې په دې باره کې کار وکړي او د یوه سمسور چاپیریال د رامنځته کولو لپاره امنیتي فضا رامنځته کړي.<br>- ماخذ:<br>استراتیژی ملي محیط زیست،ظاهر مصطفی. د چاپ کال۱۳۸۷، د محیط زیست ملي اداره. | |

**شپاړسم لسم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **متضادې کلمې** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کوونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به متضادې کلمې وپيژندلای شي.<br>- متضادې کلمې به ولوستلای او وليکلی شي.<br>- په خبرو کې به د متضادو کلموله کارولو سره مينه پيدا کړي. |
| **د تدریس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **د تدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګيزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څو انګيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسو په فکر متضادي کلمې به څه ډول کلمې وي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته دلوست متن ولولئ اوبيا په څو زده کوونکی يو يو پاراګراف متن ووايي اونوردې ورته غوږ ونيسي.<br>- يو زده کوونکی دې تختې و لاړشي. د لوست چوکاټ دې ولولي اونور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- اوس دې زده کوونکي د څومتضادو کلمو نومونه په خپلوکتابچو کې وليکي اوبيا دې په جملو کې وکاروي.<br>- يو زده کوونکی دې پرتختې متضادې کلمې وليکي اودريم زده کوونکي دې په جمله کې وکاروي.<br>- يو زده کوونکی دې پرتختې داسې جمله وليکي چې متضادې کلمې پکې راغلي وي او بل زده کوونکی دې په هغې کې متضادي کلمې په نښه کړي.<br>- اوس دې زده کوونکي په خپلو کتابچوکې لاندې جمله وليکي او په هغې کې دې متضادي کلمې په نښه کړي: |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې اوځان د ارزولو په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- څوک به د دوو متضادو کلمو نومونه واخلي. |
| **کورنۍ دنده** | زد کوونکي دې په کور کې څو متضادي کلمې په خپلو کتابچو کې وليکي اوپه بل درسي ساعت کې دې په ټولګي کې ووايي. |

**اووه لسم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| **د لوست موضوع** | **د ماین خطرونه** |
|---|---|
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکی به د ماین خطرونه وپیژني.<br>- له ماینې سیمو څخه به ځانونه وساتلای شي.<br>- د ماینونو د خطرونو په هکله به نورو ته هم خبرې وکړای شي. |
| **انگیزوي پوښتنې** | د لوست د ارزونې لپاره له زده کوونکو انگیزوي پوښتنې وکړئ:<br>دکتاب انځور ورته وښیئ چې داڅه شی دی؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته متن ولولئ، زده کوونکو دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي، د ماین د خطرونو په هکله دې خبرې و کړي اونور دې و رته غوږ ونیسي.<br>- بل زده کوونکي دې پورته شي له ماینونو څخه د ځان ژغورنې په هکله دې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- اوس یو زده کوونکی تختې ته پورته کړئ چې له ماین څخه د ځان سا تلو په اړه د یو یو زده کوونکي نظر ولیکي او بیا دې بل زده کوونکی هغه ولولي.<br>- څو زده کوونکي دې د ماینونو د خطرونو په هکله خبرې وکړي.<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي پرتختې دې د (ماین) کلمه ولیکي او نور زده کوونکي دې د ماین په باره کې یوه خبره وکړي او یو زده کوونکی دې پرتختې ولیکي او بیا دې ولولي.<br>- یو زده کوونکی دې بل زده کوونکي ته املا ووایي او بیا دې هغه ولیکي.<br>یو زده کوونکی دې پورته شي او ودې وایي که چیرې په ماین باندې شکمن شو، چاته خبر ورکړو؟ په دې هکله دې خبرې وکړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- مینونه څه زیانونه رامنځته کولای شي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کور کې د ماین د خطرونو په هکله څو کرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ولولي. |
| **اضافي معلومات** | ماینونه هغه خطرناك او وژونکي توکي دي چې په چاودلو سره یې مرگ او ژوبله رامنځته کیږي. ماینونه په دوه ډوله دي.<br>الف: د پرسونل ضد ماینونه، ب: د و سایطو ضد ماینونه.<br>د پرسونل ضد ماینونه: |

| | |
|---|---|
| هغه چاودیدونکي توکي دي چې له اوسپنې، پلاستیک او یا هم له لرگي څخه په مختلفو بڼو، لکه: د کوچنیو ما شومانو د لوبو د شیانو، قلمونو، راډیو، موټرو او داسې نورو ډولونو په وسیله جوړیږي او په منځ کې یې ناچاودي مواد ځای په ځای کیږي او د فشار په وسیله د مرگ او ژوبلې سبب گرځي.<br>د وسایطو ضد ماینونه:<br>دا ډول ماینونه هم په مختلفو ډولونو سره جوړیږي چې د وسایطو، لکه: موټر، لارۍ، ټانکونو او وزن لرونکو څارویو د فشار له امله انفجار کوي او ځاني او مالي تاوانونه را منځ ته کوي. د ماینونو پیژندل یو ستونزمن کاردی، ځکه ماینونه د ځمکې په سر او هم په ځمکه کې ښخیږي. کله نا کله په هغو سیمو کې هم موندل کیږي چې یوځل له ماینونو څخه پاکې شوې او بیا له مودې وروسته دسیلابونو په وسیله له یو ځای څخه بل ته وړل شوي وي، نو موږ ته پکار ده چې په هر ډول سره چې وي په خطرناکو سیمو کې تگ را تگ ونه کړو او له دغه پټ دښمن څخه ځان او مال وساتو.<br>په کوم ځای کې چې ماینونه وي او موږ ته رامعلوم شي. باید ورنږدې نشو. باید د ماین پاکولو ادارې ته خبر ورکړو. د نوموړې ادارې مسلکي کارکوونکي راځي او په هغه ځای کې تیږې په سور رنگ رنگوي، دا کار ددې معنا لري چې دلته مه گرزئ، خطر موجود دی. کله چې سیمې له ماینونو څخه پاکې شوې، نوهماغه تیږو ته سپین رنگ ورکوي.<br>هغو کسانوته چې د ماینونو په چادونه کې یې د وجود کوم غړی له لاسه ورکړی وي، باید هغوی ته په درناوی سره وگورو. | |

## اتلسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **ټلویزیون** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- ټلویزیون به وپیژندلای شي.<br>- تلویزیون به په سمه توگه وکارولای شي.<br>- د ټلویزیون په گټو به خبرې وکولای شي اومینه به یې ورسره پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاك،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | د نوي لوست د ارزونې لپاره له زده کوونکوڅخه څوپوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر ټلویزیون څه گټې لري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونو وروسته متن ولولئ زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.<br>- په څوزده کوونکو د ټلویزیون دگټوپه هکله خبرې وکړئ او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- په زده کوونکو متن په چوپه خوله ولولئ اوهغه پروگرامونه چې په ټلویزیون کې خپرېږي هغه دې په کتابچوکې ولیکي او بیا دې خپلو ټولگیوالو ته ووایي.<br>- زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ. یوه ډله دې د تلویزیون د گټو په هکله او بله ډله دې د تلویزیون د زیانونو په هکله خپل نظرونه سره شریک کړي او بیا دې د خپل استازې په واسطه د ټولگي په مخ کې ولولي، زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.<br>- په زده کوونکو څو لغتونه په خپل خوښه د تختې پرمخ ولیکئ او په شفاهي ډول دې خپلو ټولگیوالو ته په جملوکې وکاروي او نور دې ورته ځیر اوسي.<br>- په څو زده کوونکو د تلویزیون په هکله چې په څه ډول وکارول شي، خبرې وکړئ اونور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- څو زده کوونکي دې په دې باره کې چې د تلویزیون کوم پروگرامونه یې خوښیږي، خبرې وکړي.<br>- په څو زده کوونکو په تلویزیون کې د ښو او گټورو پروگرامونو د خپریدو په هکله خبرې وکړئ.<br>که وخت و، نور فعالیتونه پر زده کوونکو باندې سرته ورسوئ. |
| **د لوست ارزونه** | د لوست د زده کړې په هکله له څو تنو څخه پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- تلویزیون څه گټې لري؟ |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کور کې د ټلويزيون دګټو په هکله څوکرښې وليکي او په بل درسي ساعت کې ولولي. |
| **اضافي معلومات** | د ټلويزيون کلمه  يوه ترکيبي کلمه ده چې له دوو برخو جوړه شوي ده چې tele په يوناني ژبه کې  د لرې په معنا او vision په لاتين کې د ليدلو معنا لري چې په لنډه توګه د tv په نوم ياديږي. ټلويزيون د رسنيو هغه وسيله ده چې له خبرونو سربيره نور ډول ډول پروګرامونه د خلکو د پوهاوې لپاره په تصويري ډول خپروي.<br>په لومړي ځل چې ټلويزيون په خپرونو پيل وکړ، تور او سپين و او غږونه يې نه خپرول. بيا وروسته په ټلويزيون باندې د مسلکي کسانو له خوا کار وشو او داسې تور او سپين ټلويزيونونه يې رامنځته کړل چې له تصويرونوسره يې غږونه هم خپاره کړل.<br>وروسته بيا د تور او سپين ټلويزيونونو په ځای رنګه ټلويزيونونه جوړ شول. په ۱۳۵۶هجري قمري کال کې په هيواد کې د سردار  داوود خان په وخت کې دکابل راديوپه چوکاټ کې دجاپان هيواد په مرسته دتلويزون دستګاه  جوړه شوه. د ورځې يې يو ساعت خپرونې کولې. په ۱۳۵۷کال کې د ملي ټلويزيون د خپرونو ساعتونه زيات شول.<br>له ۱۳۸۱ کال  وروسته په هيواد کې خصوصي ټلويزيونونو هم دهيواد په دننه اوبهر کې په خپرونو پيل وکړ اونن سبا د هيو اد په مرکز او ولايتونو کې له دولتي ټلويزيونونو سربيره په لسګونوخصوصي ټلويزيونونو په بيلابيلوخپرونوپيل کړی دی، خوښه ټلويزيونونه هغه  دي چې د ژوناليزم د اصولوله مخې رغنده او جوړوونکی پروګرامونه ولري چې ليدونکي ورڅخه ګټه واخلي چې د هغوی په سلوك او کړو وړوکې مثبت بدلونونه رامنځته شي. |

**نولسم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **کیسه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به دګیدړې په کیسه وپوهیږي.<br>- دکیسې په مفهوم به پوه شي.<br>- د خپل کار پایلې به دکار تر پیل د مخه وسنجولای شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو انګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- په تاسوکې د چاکومه کیسه زده ده؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته لومړی خپله او بیا په څو زده کوونکو د لوست متن ووایئ او نور به ورته غوږ ونیسي.<br>- په زده کوونکو متن په چوپه خوله ولولئ او ستونزې ورته حل کړئ.<br>- په زده کوونکو باندې متن ولولئ چې۵ عام نومونه په خپلوکتابچوکې ولیکي او بیا یې په جملو کې وکاروي بیا دې څو زده کوونکي خپلې جملې د تختې پرمخ ولیکي او نور زده کوونکي دې د هغوی تیروتنې ونیسي.<br>- څو زده کوونکي دې ددې کیسې په ارزښت باندې خبرې وکړي.<br>- څو زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي چې له کیسې څخه یې څه زده کړل.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ته پورته شي، بل زده کوونکی دې ورته څو لغتونه ووایي او هغه دې په جمله کې و کاروي، بیا دې ولولي او نور دې د هغه تیروتنه ونیسي او په خپله دې ولیکي.<br>- یو زده کوونکی دې د هغه زده کوونکي د ژوند د راتلونکو ستونزو په هکله خبرې و کړي چې لوست نه وایي او کورنۍ دندې نه لیکي.<br>- په څو زده کوونکو تربیتي کیسې وکړئ چې نور ورته غوږ ونیسي.<br>څو زده کوونکي دې ووایي چې له دې وروسته به خپل ورځني کارونه په څه ډول عیارکړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- د ګیدړې کیسه څه ګټه لري؟ |

| | |
|---|---|
| **کورنۍ دنده** | هر زده کوونکی دې په کورکې په خپله کتابچه کې یو کیسه ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې په ټولګي کې ووایي. |
| **اضافي معلومات** | له هغه مهاله چې انسان او بیا انساني ژوند پیل شوی. له هغه مهاله چې کیسې پیل شوي دي چې له ادم (ع) نه نیولې بیا تر نن ورځې پورې، د ټولو انسانانو د ژوند مثبتي او منفي کیسې له یو او بل نه خوله په خوله، سینه په سینه او په دې وروستیو کې د قلم او کاغذ په وسیله یوبل ته رسیږي.<br>یو ډول هغه روایتي کیسې دي چې دیني روحیه لري او بنسټ یې ایت او حدیث دی، دوهم ډول فلکلوري کیسې دي، لکه: د پیریانو، شیشکو، ادم خورو، دیوانو او داسې نورې کیسې.<br>یو ډول کیسې تربیوي کیسې دي چې په هغوکې د میږیانو، مرغانو، حیواناتو له خوا خبرې شوي وي اوله هغوڅخه عبرت اخیستل کیږي.<br>هر هغه څوک چې کیسې لیکي، باید د ټولنې کیسې وي او خلک ترې پند واخلي او ګټورې ورته تمامې شي. نن سبا موږ د زده کوونکو لپاره تربیوي کیسو ته ډیره اړتیا لرو. ډیرې کیسې په ټولنه کې تیرې شوي وي چې له هغوڅخه تجربه اخیستل د ژوند په کارونو کې مرسته کوي.<br>د ماشومانو لپاره د تربیوي کیسو لیکل ډیره ګټه لري. ځکه د زده کړې په دغه دوره کې ماشوم د یوې لنبتې مثال لري باید ښه روزنه یې وشي، سمه لویه شي اوکه سمه روزنه یې ونه شي له همدې پیل څخه کیږي او د ټولنې په زیان تمامیږي. |

## شلم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د ماشوم درناوی** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کوونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به ماشومان وپیژندلای شي.<br>- د ماشومانو په حقونو به و پوهیدلای شي.<br>- له ماشومانو سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څو انګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه: په تاسوکې څوک د ماشومانو حقونه پیژني؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته دلوست متن ورته ولولئ اوبیا په څو زده کوونکو متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یو زده کوونکي دې ووایي چې ماشوم چاته وایي؟<br>- په څو زده کوونکو د لوست په مفهوم خبرې وکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې بل زده کوونکي ته یوه جمله ووایي او بل دې پرتختې ولیکي او بیا دې ولولي که تیروتنه لري، هغه دې ورته سمه کړي.<br>- څو زده کوونکي دې په دې هکله خبرې وکړي، که ماشوم ته حقونه ورنه کړل شي، څه به وشي.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ته ولاړشي د (ماشوم حقوق) دوه کلمې دې پرتختې ولیکي او نور زده کوونکي دې په دې هکله یوه یوه جمله ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي. بیا دې وروسته یو زده کوونکی پرتختې لیکل شوي جملې ولولي.<br>- څو کیسه دې ووایي چې ماشومان په خپلو کورنیو باندې څه حقونه لري؟<br>زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي څو زده کوونکي دې په خپله خوښه یوه جمله پرتختې ولیکي. که سمه نه وي، بل زده کوونکی دې په سمه توګه ولیکي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې د لوست د زده کړې په هکله له څو تنو څخه پوښتنې وکړي، لکه:<br>- ماشوم په خپله کورنۍ څه حقونه لري، نومونه دې ولیکي. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د ماشوم د حقونوپه هکله څوکرښې ولیکي. |

| | |
|---|---|
| **اضافي معلومات** | د انسا ن ژوند له زیږیدنې څخه پیلیږي او له هماغه پیل څخه د حقونو درلودونکی دی. له دې امله چې په خپل ژوندانه کې له ستونزو سره مخ نشي او په ژوندانه کې بریالی وي، لازمه ده چې له هماغه کوچنیوالي څخه د کورنۍ، ښوونځي او دولت له خوا ورته حقوق ور کړل شي چې د خپلو حقونو په راوړلو سره د کورنۍ او ټولنې د خدمت وړ وګرځي.<br>ماشوم د خپلې کورنۍ او ټولنې په غیږ کې د ژوند، خوراک، لباس جسمي او رواني روغتیا، د زده کړې او پالنې، جسمي او ذهني انکشاف حق لري.<br>ماشوم باید د هر ډول توپیر، زور او فشار څخه وساتل شي او په یوه ارامه فضا کې ژوند وکړي او وروزل شي. ځکه چې نننۍ ماشوم د راتلونکې ټولنې جوړوونکی دی او ستر مسوولیتونه ورته سپارل کیږي.<br>نن سبا په ټوله نړۍ کې په تیره بیا د دریمې نړۍ په هیوادونو کې ماشومان او تنکي ځوانان له حقونوڅخه بې برخې دي او له زیاتو مشکلاتو سره مخ دي چې د هغوی په روح او روان باندې یې ناوړه اغیزې کړې ده.<br>خوله نیکه مرغه نن د کورنیو، نړیوالې ټولنې او دولتونو له خوا د ماشوم حقونو ته توجه شوې ده.<br>ملګرو ملتونو د ماشوم د حقونو د تامین لپاره په ۴۱ مادوکې قانون تصویب کړ او هر هیواد یې مکلف کړی دی چې د ماشوم ژوندانه ته او د هغه جسمي او روحي انکشاف ته پام وکړي.<br>په دې قانون کې له ۱۸ کلنۍ څخه د کم عمر درلودونکی ماشوم بلل کیږي. د هغوی د جسمي او روحي ودې او انکشاف لپاره کورنۍ او دولتونه موظف شوي دي. پدې د کنوانسیونه په هره ماده کې د ماشوم حقه حقونو ته پام شوی دی چې دلته یې څو مادې راوړو:<br>دویمه ماده: دتوپیر مخنیوی: په دې کنوانسیون کې حقوق له توپیر پرته په ټولو ماشومانو پورې اړه لري او دولتونه باید د هر ډول توپیر په مقابل کې د ماشومانو ملاتړ وکړي.<br>دریمه ماده: په هر اقدام کې باید د ماشومانو ګټې په پام کې ونیول شي.که چیرې موراوپلار او د هغوی سرپرست ورته نظر نه کوي دولتونه باید له ماشومانوڅخه جدي څارنه اوملاتړ وکړي.<br>۲۷ ماده: هرماشوم حق لري د ژوندانه له داسې سطحې څخه برخمن شي چې د هغه د جسمي، ذهني، رواني اواجتماعي ودې ضمانت وکړي.<br>۳۱ ماده: د هغه ماشوم حالت چې د دولت له خوا کورنۍ ته سپارل کیږي، باید په کلکه ارزیابي شي.<br>له دې امله باید د ماشومانوحقونو ته پاملرنه وشي. دولتونه باید د ماشومانو لپاره د تفریح زمینه برابره کړي، ورزشي کلپونه او سالم تفریحي پروګرامونه جوړ کړي. د تلویزیویون او پروجکتور له لارې علمي او ورزشي فلمونه وښودل شي. |

**يوويشتم لوست**

**د تدريس لارښود پلان**

**د تدريس وخت**: **د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| **د لوست موضوع** | **نيوټن** |
|---|---|
| **د زده کړې موخې**:<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به نيوټن وپيژندلای شي.<br>- د ځمکې د جاذبې قوه به وپيژندلای شي.<br>- د ځمکې د جاذبې په هکله به خبرې وکړای شي.<br>- له معلوماتي لوستونو سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يو کسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **دتدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | له زد کوونکوڅخه څو انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر ځمکه ولې هر شی ځانته راکاږي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- څو زده کوونکي دې په لوست باندې خبرې وکړي.<br>- څوزده کوونکي دې پردې خبرې وکړي چې ځمکه ولي هر څه د ځان خواته کشوي.<br>- يو زده کوونکی دې پورته شي. بل زده کوونکي ته دې د متن يو پاراگراف ووايي او هغه دې پرتختې وليکي. نور زده کوونکي دې هغه و لولي. که يې تيروتنه درلوده، هغه دې ورته سمه کړي.<br>- يو زده کوونکی دې د نيوټن په باره کې خبرې و کړې، نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې لاندې جملې ته انکشاف ورکړي:<br>- ځمکه د جاذبې قوه لري...<br>بيا دې څوکسه خپلې ليکل شوي جملې په ټولگي کې ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- څو زده کوونکي دې په لاندې جملوکې سمه په گوته کړي:<br>الف ځمکه د جاذبې قوه لري.<br>ب تيږه د جاذبې قوه لري.<br>ج هيڅ شی د جاذبې قوه نه لري.<br>- يو زده کوونکی دې د نيوټن کيسه وکړي چې څرنگه يې د ځمکې د جاذبې قوه پيدا کړه، نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي. |

| | |
|---|---|
| | - که وخت و، ښوونکی دې همداسې ورته فعالیتونه په زده کوونکو باندې سرته ورسوي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې د لوست د زده کړې په هکله له څو تنو څخه پوښتنې وکړي، لکه:<br>- نیوټن د ځمکې د جاذبې قوه په څه ډول پیدا کړه؟ |
| **کورنۍ دنده** | په کورکې دې د نیوټن د خدمت په هکله څو کرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | اسحق نیوټن فزیک پوه، ریاضي پوه او د ستورو پېژندونکی و. نوموړی د انګلستان اوسیدونکی و. تر ۱۶۴۲- ۱۷۲۷م کال پورې یې ژوند کړی او له پلاره یتیم پاتې شوی دی. د کورنۍ ستونزې یې مور په غاړه اخیستي وې. نوموړی د ۶ کالو و چې مور یې بل واده وکړ. د نوموړي سرپرستي نیا ته پاتې شوه. په ۱۶۶۵کال کې یې په انساني علومو کې لیسانس ترلاسه کړ. نیوټن سره به تل دا فکر و چې سیارې په خپل مدار څرنګه د لمر په شاوخوا ګرځي.<br>یوه ورځ په باغ کې ناست و، ویې لیدل چې یوه مڼه له ونې ځمکې ته راولویده. سمدلاسه متوجې شو چې د مڼې د رالویدلو سبب هماغه د لمر په شاوخوا د سیارو ګرزیدلو په څیر دي. لمر د سیارو د کشش ځواک لري. دا ورته جوته شوه چې ځمکه دکشش قوه لري. هرشی د ځان خواته راکاږي.<br>نیوټن وروسته انعکاسي تلسکوپ اختراع کړ، له دې وروسته ډېر مشهور شو. نیوټن په ۱۶۹۶ کال کې د (طبیعي فلسفې د ریاضي اصول) کتاب ولیکه. نیوټن د نړۍ له مشهورو او نامتو پوهانو څخه دی چې په ساینسي برخه کې یې ډېر خدمت کړی دی. نوموړی د ۱۷۲۶ کال په مارچ کې مړ شویدی.<br>ماخذ: ویکیپیدیا |

## دوه ویشتم لوست

## د تدریس لاربنود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **بشر دوستي** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کوونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به بشر دوستي وپيژني.<br>- له يوبل سره به د بشر دوستۍ په اساس کړنه وکړای شي.<br>- له بشر دوستۍ سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يو کسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **دتدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | لوست ته د داخيليدو په موخه له زده کوونکو څو انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر بشر دوستي څه ته وايي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې په ټولگي په خپلو کتابچو کې د انسان دوستۍ په هکله په وار سره يوه يوه کرښه وليکي او بيا دې څو تنه د تختې پرمخ کې ولولي.<br>- يو زده کوونکی دې د کتاب له مخې يو کرښه بل زده کوونکي ته ووايي او هغه دې پرتختې وليکي او بيا دې ولولي. که يې تيروتنه کړي وه، بل زد ه کوونکی دې ورته سمه کړي.<br>- يوزده کوونکی دې ووايي که چيرې يې له چاسره مرسته کړي وي.کيسه دې و کړي.<br>- يوزده کوونکی دې تختې ته ولاړشي، بشري حقوق دې پرتختې وليکي اوبيا دې د نورو زده کوونکو انکشاف ورکړل شي اوهغه دې پرتختې وليکي، بيا دې ولولي، نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- څوزده کوونکي دې له يو بيوزلي انسان سره د مرستې د گټو په هکله خبرې وکړي، ښوونکی کولای شي، ورسره مرسته وکړي.<br>که وخت و، تاسو ښوونکي کولای شئ د پورته پوهنيزو، مهارتي او ذهنيتي فعاليتونو په څير فعاليتونه ور باندې سرته ورسوئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې و کړي، لکه:<br>- بشر دوشتي څه ته وايي؟ |
| **کورنۍ دنده** | په کور کې دې د بشردوستۍ په هکله څو کرښې وليکي. |

**درویشتم لوست**

**د تدریس لاربنود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **میلمه پالنه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کوونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- میلمه پالنه او ارزښت به و پيژني.<br>- میلمه پالنه به وکړای شي.<br>- له میلمه پالنې سره به يې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انگیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسوپه فکر د میلمنو قدر او پالنه به څه گټه ولري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په ځو لایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- په زده کوونکو متن ولولئ. په متن کې راغلي نومونه دې په خپلوکتابچوکې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي. بیا دې د بیلگې په توگه یوه جمله پرتختې ولیکي او هغه دې ولولي.<br>- څوزده کوونکي دې په وار سره د میلمه پالنې په هکله په ټولگي کې خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي. تاسو هم ورسره مرسته کولای شئ.<br>- زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ. یوه ډله د ې د میلمه پالنې په هکله اوبله ډله دې د میلمه د نه پاللو په هکله یوه یوه جمله ووايي او یو تن دې ولیکي بیا دې هغه استازی د ټولگي په مخکې ولولي. نور دې ورسره خپل نظر شریک کړي.<br>- یو زده کوونکی پورته کړئ بل زده کوونکي ته دې دوې کلمې ووايي اوهغه دې پرتختې په جمله کې وکاروي.<br>- زده‌کوونکي دې لاندې کلمې په خپلوکتابچوکې ولیکي او بیا دې د لومړي توري په بدلون داسې بله‌کلمه ترې جوړه کړئ چې معنا لرونکې وي.<br>لکه: (کور_ پور_ حال _ مینه _ حرکت)<br>که وخت و، تاسو دکتاب د فعالیتونو په ډول نور ورته فعالیتونه ورکړئ چې سرته يې ورسوي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې د لوست د زده کړې په هکله له ځو تنو څخه پوښتنې وکړي، لکه:<br>میلمه پالنه څه ته وايي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کور کې د میلمه پالنې په هکله څوکرښې ولیکي. |

## څليرويشتم لوست
## د تدريس لارښود پلان
## د تدريس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | ازادي |
|---|---|
| د زده کړې موخې:<br>پوهنيزې<br>مهارتي<br>ذهنيتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به آزادي وپيژني.<br>- له آزادۍ سره به يې مينه پيدا شي.<br>- د آزادۍ په هکله به خبرې وکړای شي. |
| د تدريس لارې | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| دتدريس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| مقدماتي فعاليتونه | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| انگيزوي پوښتنې | له زده کوونکو څخه انگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسو په فکرکه په يوه هيواد کې آزادي نه وي، څه زيان به ورته ورسيږي؟ |
| د ښوونکي فعاليتونه | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکی دې متن په چوپه خوله ووايي او د متن د نووکلموپه معنا اومفهوم دې ځان پوه کړي.<br>- څو زده کوونکي دې دشعر د مفهوم په باره کې خبرې و کړي.<br>- زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي. يوه ډله دې د أزادۍ دگټوپه هکله خپل نظرونه سره شريک کړي او بله ډله دې د أزادۍ د نه درلودلو د زيانونو په هکله خپل نظرونه سره شريک کړي. د هرې ډلې استازی دې خپل ليکل شوي نظرونه د ټولگي په مخ کې ولولي. |
| د لوست ارزونه | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- آزادي څه ته وايي؟ |
| کورنۍ دنده | زده کوونکي دې په کورکې د آزادۍ په هکله څوکرښې وليکي اوپه بل درسي ساعت کې دې ووايي. |
| اضافي معلومات | د خدای (ج) له نعمتونو څخه يو هم آزادي ده چې انسان يې په دنياکې آزاد پيدا کړی دی. په هيواد کې ټول انسانان بايد د آزادی درلودونکي وي. آزادي د انسان طبيعي حق دی. انسان بايد په دنيا کې د خپلې آزادۍ چوکاټ وپيژني.<br>دبشر د حقوقو په اعلاميه کې هم راغلي دي چې انسان په ټولنه کې له يوبل سره مساوي حقوق لري او بايد ورته پاملرنه وشي.<br>زموږ د هيوا د په اساسي قانون کې(۱۳۸۲کال) هم آزادۍ ته په درنښت کتل شوي او |

| | |
|---|---|
| په ټولنه کې یې د هیواد هر وګړی ته دغه طبیعي حق ورکړی دی. د ټولنې د وګړو ترمنځ یې هر ډول توپیر له منځه وړی اومنع کړی دی.<br>داچې آزادي زموږ یو طبیعي حق دی، بشري ټولنې هم په دغه حق ورکولوباندې ټینګار کړی دی او زموږ اساسي قانون هم ورته ځای ورکړی، نوباید موږ له یوې خوا په خپل حق باندې ځانونه پوه کړو چې موږ ترکومې اندازې پورې په ټولنه کې د آزادۍ خاوندان یو یعنې دخپلې آزادۍ چوکاټ وپیژنو. داسې آزاد نه یو چې دنورو ازادۍ ته زیان ورسوو اویا په خپله ټولنه کې دخپلوسپیڅلو مقدساتو اومثبتو دودونو څخه پښه وباسو. داسې ونه شي چې دخپلې آزادۍ په غوښتلوسره دنورو آزادي په لغت ووهو. داسلام مبارک دین هم خپلو پیروانوته په خپل چوکاټ کې آزادي ورکړي اونوروته یې له زیان رسولوڅخه منع کړي دي.<br>په ټولنه کې هر څوک خپلواک دی اوحق لري چې زده کړه وکړي. هیڅوک دچا د زده کړې مخه نیولی نشي. ځکه هر ماشوم د زده کړې په واسطه کولای د خپل ځان او ټولنې لپاره کار وکړي.<br>هرڅوک آزادي اوحق لري چې دکورنۍ له خوا ورته د زده کړې زمینه برابره شي اوسمه ګټه ترې واخلي. زموږ په دیني ارشاداتوکې راغلي چې څه د ځان لپاره خوښوې د نورو لپاره یې هم خوښوه.<br>نه یوازې انسانان باید خپلواکي ولري بلکې ټول حیوانات اوپرنده ګان هم باید آزادي ولري اوهغه د بندیانوپه څیر ونه ساتل شي. ځکه هغوی هم خدای الله (ج) آزاد پیدا کړي دي باید آزاد ژوند وکړي. | |

**پنځه ویشتم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **څپه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به دګرامر په برخه کې څپه وپېژني.<br>- زده کوونکي به له ګرامر سره مینه اوعلاقه پیدا کړي.<br>- په جملو کې به څپه ولوستلای او ولیکلای شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسيز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو پوښتنې وکړئ، لکه: څه فکر کوئ چې څپه څه ته وايي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته په ځولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکو ته په عملي ډول څپه وښيئ او عملا دې ورباندې کاروکړي. چې په کلمه کې عملا څپه وښيي.<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي، پرتختې دې یوه جمله ولیکي اوبل زده کوونکی دې پرهغې کې څپې جلا کړي، تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده‌کوونکي دې لاندې لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې وکاروي او بیا دې په ټولګي ووايي.<br>وزګار - پاک – خور- چاپېریال<br>- وروسته دې څو زده‌کوونکي متن په مناسب اواز په ټولګي کې ولولي، ښوونکي دې ورسره مرسته‌کوي.<br>- زده کوونکي دې کتاب بند کړي. په دوو ډلو یې وویشئ. هره ډله دې یوه جمله ولیکي او پرهغې کې دې په شریکه کلمې په څپو واړوي او بیا دې نورو زده کوونکوته دهغو استازی پرتختې ولیکي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له زده کوونکوڅخه د لوست د زده کړې په هکله له څو تنو څخه دلوست په هکله پوښتنې و کړي، لکه:<br>څپه تعریف کړئ. |
| **کورنۍ دنده** | هرزده کوونکی دې په خپله جمله ولیکي اوپه هغې کې دې کلمې په څپو واړوي. |

**شپږ ویشتم لوست**

**د تدریس لاربنود پلان**

**د تدریس وخت:** **د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **ښکلی لیک** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کوونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- ښکلی لیک به وپیژني اوپرې به وپوهیږي.<br>- ښکلی لیک به ولوستلا ی او ولیکلای شي.<br>- له ښکلي لیک لوستلو اولیکلو سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه انگیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسو په فکر ښکلی لیک څه ډول لیک وي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- دوه زده کوونکي پورته کړئ چې پرتختې باندې دوه کلمې په خپله خوښه په ښکلي لیک ولیکي اوبیا یې ولولي.<br>- څو زده کوونکي دې د ښکلي لیک په باره کې خبرې وکړي.<br>- زده کوونکي په دوو ډلو باندې وویشئ. یوه ډله دې دښکلي لیک دصفاتو په هکله اوبله ډله دې دخراب لیک دزیانونو په هکله نظر ورکړي اوبیادې دخپل استازي په واسطه ووایي.<br>- یوزده کوونکی دې پرتختې یوه کلمه ولیکي، تاسو ورته د هغې دښه لیکلو او تیروتنې په هکله لارښوونه وکړئ او ور ته یې سمه کړئ.<br>- یوزده کوونکی دې بل ته یوه کلمه ووایي او بل زده کوونکی دې پرتختې ولیکي اوپه جمله کې دې وکاروي.<br>یوزده کوونکی دې پرتختې ( ښکلی لیک ) عنوان ولیکي او نور زده کوونکي دې دښکلي لیک په هکله یوه یوه خبره وکړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړي، لکه:<br>- ښکلی لیک کوم لیک ته وایي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې یوه جمله په ښکلي لیک ولیکي او په بله ورځ دې په ټولگي کې ووایي. |

## اووه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **کندهار ولایت** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- دکندهارتاریخي ولایت به وپیژني.<br>- دکندهار په باره کې به متن ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- دهیواد له ولایتونو سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انګیزوي پوښتنه وکړئ، لکه:<br>تاسو کله د هیواد د تاریخي ولایت کندهار نوم اوریدلی دی؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- څو زده کوونکي دې د لوست په هکله له یادو خبرې وکړي چې په لوست کې څه ویل شوي دي؟<br>- زده کوونکي په دوو ډلو وویشئ. هره ډله دې د پارکونو دګټو په هکله خپل نظر ووایي او بیا دې نوموړي نظرونه په ټولګي کې ووایي.<br>- څوزده کوونکي د لوست د متن په هکله خبرې وکړي.<br>- څو زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي، لکه:<br>پارک، تاریخي، ارزښت، نقشه، پایتخت او ښار<br>- که وخت و، زده کوونکوته نور فعالیتونه هم ورکړئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه: مبارکه خرقه شریفه چیرې ده؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې یوه جمله په ښکلي لیک ولیکي اوپه بله ورځ دې په ټولګي کې ولولي. زده کوونکي دې په کورکې دکندهار په هکله څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | کندهار د ګران وطن افغانستان په سویل لویدیځ کې پرو ت ولایت دی. کندهار د افغانستان له سترو تاریخي ښارونو څخه ګڼل کیږي. په (۱۷۴۷)میلا دي کال د افغانستان لوی او نومیالي امپراطور احمد شاه بابا خپله پلا زمینه وټاکله. د غه واکمن د احمد |

| | |
|---|---|
| شاهي ښار بنسټ کيښود.<br>د کندهارختيځ او سويل ته بلوچستان پروت دی. دا ولايت نيمه صحرايي اقليم لري. هوا يې په مختلفو سيمو کې تو پير کوي. د اورښت کچه يې ډيره ټيټه ده . په زياترو سيموکې د اورښت اندازه په يو کال کې له سلو نه تر څلور سوه ملي مترو پورې رسيږي. مشهور سيندونه يې ارغنداو، ترنگ او وچ مانده سيندونه دي چې د کندهار کرنيزې ځمکې خړوبوي او د يادو سيندونو تر څنگ د هلمند سيند هم له کندهار څخه تيريږي. مهم کرنيز حاصلات يې عبارت دي. شولې، غنم، جوار، اور بشې، انگور، انار، هندوانې، خټکي او داسې نورې خوړې وچې او تازه ميوې لري چې په وچوميوو کې يې وځکې، ( مميز) انځر يو ځانگړی ارزښت لري.دغه راز دکندهار انار په هيواد کې ډير شهرت لري.<br>خرقه مبارکه هم دکندهار په ښارکې ده. داحمد شاه بابا اوميرويس خان نيکه مقبرې هم په کندهار کې دي. کندهار دتفريخ لپاره ښکلي ځايونه اوپارکونه لري چې چهل زينه يې زيات شهرت لري دغه راز اوس مهال دعينو مينې تفريحي ځايونو ملي اونړيوال شهرت پيدا کړی دی. | |

**اته ویشتم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **موزیم** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- دهیوا د تاریخي موزیم به وپیژني.<br>- د موزیم د لوست متن به سم ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- د هیواد له تاریخي آثاروسره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انګیزوي پوښتنه وکړئ، لکه:<br>- په موزیم کې څه شی ساتل کیږي؟ نوموونه یې واخلئ. |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته زده کوونکوته موزیم معرفي کړئ اوبیا په زده کوونکو متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي دې متن ولولي او په لوست کې دې هغه جمله ولیکي چې هغه یې خوښیږي بیا دې نوموړي جمله د ټولګیوالوپه مخ کې ولولي.<br>- زده کوونکي دې وو ایي چې په موزیم کوم آثار ساتل کیږي؟<br>- زده کوونکي په دوو ډلو باندې وویشئ اوهر ډله دې په شریکه باندې د لرغونو آثارو د ارزښت په هکله یوه یوه جمله ولیکي او بیا دې د ټولګي په مخ کې ولیکي.<br>- څو زده کوونکي دې د لوست د ارزښت په هکله خبرې وکړي اوڅوزده کوونکي دې له هیواد څخه د تاریخي آثارو د غلا کولو د زیانونو په هکله خبرې وکړي.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ته ولاړشي. بل زده کوونکی دې ورته له متن څخه یوه جمله د املا په توګه ووایي او هغه دې ولیکي. که یې تیروتنه درلوده، بل زده کوونکی دې ورته اصلاح کړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پو ښتنې وکړئ. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې د موزیم په هکله په کور کې له خپل فکر څخه څو کرښې ولیکي اوپه بل درسي ساعت کې دې په ټولګي کې ولولي. |
| **اضافي معلومات** | موزیم هغه ځای ته ویل کیږي چې هلته تاریخي قیمتي آثار ساتل کیږي. زموږ د هیواد ملي موزیم د نړۍ په کچه یونامتو موزیم دی. د افغانستان مرکزي موزیم د لومړي ځل لپاره په ۱۹۱۹ م کال په باغ بالا کې تا سیس شو چې هغه مهال د عجایب خانې په نامه |

| | |
|---|---|
| سره یادیده او د قران کریم لاسي نسخې، لاسي صنایع او هغه کتابونه چې ډېر کم میندل کیدل په کې ساتل کیدل.<br><br>**د ۱۳۰۳** کال د عقرب د میاشتې په ۲۵ نیټه د غازي امان الله خان په غوښتنه ملي موزیم ارگ ته انتقال شو. د اعلیحضرت محمد نادرشاه د واکمنۍ پر مهال په ۱۳۱۰ کال د کابل ښار په جنوب غرب کې ورته ځا ی جوړ کړی شو او د لرغونو تو کو، لکه: مجسمو، سکو، ډبرلیکونو د ساتلو لپاره یې بیبلا بیلې څانگې جوړې شوې او د کابل د موزیم په نامه ونومول شو. د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د واکمنۍ پرمهال په ۱۳۲۷ کال کې د غوایي د میاشتې په ۱۴ نیټه په یو نسکو کې ثبت شو .<br><br>د افغانستان د لومړي جمهور سردار محمد داود خان د واکمنۍ په دوره کې هغه منقول او غیرې منقول موزیمونه چې د هیواد په بیلا بیلو ولایتونوکې جوړ شوي وو، د هغوی ټول آثار ملي موزیم ته راوړل شول او دغه موزیم د سیمې د هیوادو نو په کچه یو بې جوړې موزیم جوړ شو. د خپل منځي شخړو له امله ډېر تاریخي آثار له منځه لاړل، خو په دې وروستیو کې چې په هیواد کې لږ څه نسبي سوله راغله، هغه لرغوني توکي چې بهرته وړل شوي وو، یوځه له نورو هیوادونوڅخه بیرته راوړل شول اوپه ملي موزیم کې کې ځای پرځای شول. | |

**نه ویشتم لوست**

**د تدریس لاربنود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **مور** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکی به د مورحقوق وپيژني.<br>- دمور لوست به ولوستلی او وليکلی شي او له مورسره به دکور په کارونو کې مرسته وکړای شي.<br>- د مور له حقونوسره به يې مينه پيدا شي |
| **د تدريس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **دتدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګيزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انګيزوي پوښتنې وکړئ چې فکرېې نوي لوست ته راوګرځي. |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونوروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې يوځل متن په چوپه خوله ولولي، ستونزمنې برخې دې په نښه کړي، تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- څوزده کوونکي دې د مور د حقونو په باره کې خبرې وکړي اونور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په جملو کې وکاروي اوبيادې څوتنه پرتختې خپلې جملې وليکي اونور دې ورباندې نظر ورکړي.<br>- يوزده کوونکي دې تختې ته پورته شي. پرتختې دې د مورکلمه وليکي اونور زده کوونکي دې د مور په باره کې يوه يوه جمله ووايي اوهغه دې وليکي.<br>- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د هغو مرستو يادونه وکړي چې په کورکې يې له مور سره کوي.<br>- زده کوونکي په دوو ډلوباندې وويشئ. هره ډله دې له مور سره د مرستې په هکله نظرونه شريک اوپه کاغذ کې دې وليکي او بيا دې د ټولګي په مخکې د خپل استازې په واسطه ووايي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړې، لکه:<br>- مور پرخپلو اولادونو باندې څه حقوق لري؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې دمور دحقونو په هکله څوکرښې وليکي. |

**دیرشم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **د نشه يي توکو زيانونه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به نشه يې توکي او د هغوی زيانونه وپيژني.<br>- دنشه يي توکو لوست به ولوستلای او وليکلای شي.<br>- د نشه يي توکو له کارولو څخه به ځانونه وساتلای شي.<br>- دنشې له نه کولو سره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدریس لارې** | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **دتدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه څوانگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- تاسوکله ديونشه يي سړي ناوړه ژوند ليدلای دی؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- يو زده کوونکی دې پرتختې دنشې کلمه وليکي او نور زده کوونکي دې د نشې د زيانونو په هکله يوه يوه جمله ووايي او پرتختې دې وليکي. بيا دې يو بل زده کوونکی د هغه په ليکنه کې تيروتنه په گوته کړي او ودې لولي.<br>- څو زده کوونکي دې د نشې د لوست په گډوخبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- څو زده کوونکي دې د نشه يي توکو په زيانونو باندې خبرې وکړې او نور زده کوونکي دې ورسره په بحث کې شريک شي.<br>- زده کوونکي په دوو ډلو وويشئ. يوه ډله دې د نشه يي توکو د زيانونو په هکله خپل نظرونه وليکي اوبله ډله دې له نشه يي توکو څخه د ځان ساتلو د لارو چارو په هکله خپل نظرونه د خپل استازي په واسطه وليکي او په ټولگي کې دې ولولي.<br>- څو زده کوونکي دې د لوست متن په مناسب اواز ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غير اوسي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړي، لکه:<br>په نني لوست کې موڅه ولوستل؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په نشه يي توکو د يواخته شوي شخص د ژوندپه هکله څوکرښې وليکي. |
| **اضافي معلومات** | تنبا کو يوضرري بوټی دی. په معتدلو گرمو سيموکې کرل کيږي. دا بوټی د لومړي ځل لپاره ( |

| | |
|---|---|
| کرستف کلمب) په کیوبا کې کشف کړ، بیا یې اروپا ته راوړ او بیا له ارو پا څخه نورې نړۍ ته د تنباکو تخمونه خپاره شول . اوس مهال د نړۍ په هرګوټ کې په پراخه اندازه پیداکیږي. د تنباکو پاڼې په نسوارو او سګرټو کې استعمالیږي.<br>اوسنیو څیړنو ثابته کړې چې په نشه یي توکو کې د سرطان د نارو غۍ اغیز په سګرټو کې تر ټو لو زیات دی.<br>نسوار: نسوار د خولې او پوزې له لارې استعمالیږي. هغه څوک چې نسوار کوي له خولې څخه یې بد بوی ځي. غاښونه یې ژیړیږي اووری یې د وخت په تیرېدو سره له منځه ځي.<br>د پوزې نسوار: د پوزې د سوري کیدو او د دما غ د نازکو رګونو د بندیدو او یا له منځه وړل کېدو سبب کیږي.<br>بنګ:<br>د پسرلي په موسم کې کرل کیږي. بشر له ډېرې پخوا زمانې راهیسې له دغه بوټي سره پیژندګلوي درلوده. د بنګو له دانو څخه به یې په پخوا وختونوکې د روماتیزم، سینه بغل او ټوخي اوداسې نورو مرضونود تداوي لپاره استفاده کوله، خواوس د بنګو له بوټي څخه چرس وباسي او د نشې لپاره یې استعمالوي. چرس د سیګرټ، چلم، نیچې او داسې نورو لارو استعمالیږي، خو تر ټولو زیاته خطرناکه لار یې د او مو چرسو خوړل دي.<br>هیروین:<br>هیروین له تریاکو څخه لا س ته راځي. هیروین لومړی ځل په ۱۸۷٤م کال د یو انګلیسي عالم له خوا کشف شول. تریاك لومړی په مورفین او وروسته په هېروینو بدلېږي. مورفین له تریاکو څخه تقریبا سل ځلې او هیروین له مورفینونو څخه تقریبا څلور پنځه ځلې قوي دي. وجود کمزوری کوي په اعصابو باندې اغیز کوي. د ښه کار او بد کار توپیر نشي کولای. وجود یې توان له لاسه ورکوي، کارنشي کولای، له کور او ټولنې لري کیږي او ټولنه ورته په ښه نظر نه ګوري. د هرې ورځې په تیریدو سره له کورنۍ لري کیږ ي . په غلا لاس پورې کوي او په نتیجه جرمونه ته لاس اچوي.<br>ماخذ:<br>-آګاهي ازاضرار مواد مخدر دچاپ کال ۱۳۸۸<br>-د درملو اونشه یي موادو په اړه اساسي معلومات، د نوي کوراو نوي ژوند د لسمې کلیزې په ویاړ. | |

**يوديرشم لوست**

**د تدريس لاربنود پلان**

**د تدريس وخت**: **د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| **د لوست موضوع** | **روغتيا ساتنه** |
|---|---|
| **د زده کړې موخې**:<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به د روغتيا په ارزښت پوه شي.<br>- د روغتيا ساتلو په باره کې به خبرې وکړای شي او لوست به ولوستلای او وليکلا ی شي.<br>- له روغتيا ساتلوسره به علاقمند شي او مينه به يې ور سره پيدا شي. |
| **د تدريس لارې** | يو کسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **دتدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | له زده کوونکوځخه ځوانگيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسو په فکر روغتيا وجود ته څه گټه لري؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونوروسته په ځولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- په چوپه خوله دې متن ولولي اوستونزمن ځايونه دې په گوته کړي. تاسوېې ورته حل کړئ.<br>- زده کوونکي دې د روغتيا ساتلوپه باره کې خبرې وکړي.<br>- دمتن د مفهوم په هکله دې خبرې وکړئ.<br>- زده کوونکي په ډلو وويشئ. هرډله دې په خوښه له يادو څخه د روغتيا ساتلو په هکله خپل نظر ووايي او استازی دې وليکي. بيا دې په وارسره د تختې پرمخ ووايي.<br>- **ځو زده کوونکي دې د روغتيا د خرابيدو د زيانونو په هکله وغږيږي اوښوونکی دې په پای کې د نورو زده کوونکو نظرونه هم را واخلي او نور زده کوونکي دې ورته ځير وي.**<br>- **ځو زده کوونکي دې متن ولولي او نور زده کوونکي دې ورته پاملرنه وکړي.** |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړي، لکه:<br>روغتيا وجود ته څه گټې لري؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د روغتيا ساتلو په هکله ځوکرښې ليکنه وکړي او بيا دې په بل درسي ساعت کې په ټولگي کې ولولي. |
| **اضافي معلومات** | الله (ج) انسان ته چې اشرف الملوقات يې پيدا کړی دی، ډير زيات نعمتونه ور په برخه کړي دي. له دغو نعمتونو څخه يوروغ صحت دی. انسان د روغتيا په ساتلو او روغ |

| | |
|---|---|
| صحت سره کولای شي چې هم خپل کارونه سرته ورسوي اوهم د خدای (ج) امرپرځای کړي او هم د هغه لوی ذات عبادت وکړی شي.<br>که د یو چا روغتیا سمه نه و ي او یا ورته پاملرنه ونه کړي، داسې کسان خپل کارونه هم په سمه توگه سرته رسولی نشي او هم به له دیني فرایضو اوعبادت کولو څخه بې برخې پاتي شي.<br>روغتیا هغه وخت ساتل کیدای شي چې انسان د خپلې روغتیا ساتلو پام وکړي. خپل ځان اوکالي پاک وساتي او خپل چاپیریال پاک وساتي.<br>په ناپاکه ځان، کالیو اوچاپیریال کې مکروبونه ځای پیدا کیږي او وجود ته ننوزي او انسان له ډول ډول ناروغیوسره مخامخ کیږي.<br>روغ عقل په روغ بدن کې وي . روغ بدن هغه وخت درلودلی شو چې خپلې روغتیا ته پام وکړو. ځکه خو وایي چې پاکوالی د ایمان یوه برخه ده.<br>موږ یوازې د سالم بدن په در لودلو سره کولای شو چې هم خپلې کورنۍ ته کار وکړو او هم د خپل هیواد په ابادۍ کې ونډه واخیستلای شو. د طب پوهان ترتداوی وقایي ته ډیر ارزښت ورکوي. په نورو پرمختلو هیوادونوکې کې د وقایي کولوپه برخه کې موسسې جوړې شوي دي اوله خلکو سره تبلیغاتي کارونه سرته رسوي اوورته وایي چې خپل ځانونه دپاکوالي اود متوازن غذایي رژیم په واسطه وقایه کړئ. په موږ کې ستره ناروغي داده چې د خپلو ځانونو په وقایه پسې نه گرزو او بیا په تداوی باندې ډیرتاوانونه کوو.<br>د خپلې روغتیا د ساتلو لپاره وقایه نه یوازې ددې لپاره اړینه ده چې روغتیا موساتل کیږي اود تداوی له لگښتونوڅخه ساتل کیږو، بلکې د تداوی په وخت کې د درملو له جانبي عوارضو څخه چې نورې ناروغۍ رامنځته کوي، هم خلاصیږو. | |

**دوه دیرشم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **گل پاچا الفت** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د هیواد یونامتو شاعر به وپیژني.<br>- متن به ولوستلای اوولیکلای شي.<br>- د هیواد له شاعرانو اولیکوالو سره به یې مینه پید ا شي.<br>- خپله به یې له لیکلو سره مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه یوه انگیزوي پوښتنه وکړئ چې د لوست خواته یې فکر واوړي، لکه:<br>- د لوست عکس به دې چا وي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته تاسو یوځل ورته دگل پاچاالفت د شعر اوشاعرۍ په هکله خبرې وکړئ چې دزده کوونکو مینه ورسره پیدا شي.<br>- زده کوونکی دې متن ولولي اونور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- د لوست متن دې په چوپه خوله ولولي او هر یو دې په خپله خوښه یوه جمله له متن څخه ولیکي، بیا دې ځوتنه دتختې پر مخ ولیکي اوبل زده کوونکی دې د هغه تیروتنه ونیسي.<br>- یوزده کوونکی دې پرتختې پوهه ولیکي. نور زده کوونکي دې دپوهې په هکله خپل یویونظر ووایي اوهغه دې پر تختې ولیکي.<br>- یوزده کوونکی دې دگل پاچا الفت په هکله له یادو خبرې وکړي اونور دې ورته غوږ ونیسي. تاسو کولای شئ چې دگل پاچا الفت په هکله ورته نورې خبرې وکړئ.<br>- زده کوونکي دې لاندې لغتونه په خپلو کتابچو کې په جملوکې وکاروي اوبیا دې ځوتنه په ټولگي کې وو ایي:<br>پوهه - چوپتیا – الفت - لیکوال – شریک- خبرې- ستونزمن<br>- د لوستل شوي شعر مطلب دې په نثر واړوي او په خپلوکتابچو کې دې ولیکي. |

| | |
|---|---|
| | بيا دې د ټولګي په مخ کې ولولي.<br>- تاسوورته دشعراوشاعرۍ دګټوپه هکله خبرې وکړئ.<br>-په متن کې دې خاص نوم پيدا او په خپلوکتابچو کې دې وليکئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ګل پاچا الفت څوک اوڅه کارونه يې کړي دي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکی دې دشعر دګټو په هکله څو کرښې په کور کې وليکي. |
| **اضافي معلومات** | استادګل پاچا الفت د مير سيدپاچا زوی او د سيد فقير پاچا لمسی دی چې په (۱۲۸۸)هجري شمسي کال کې د لغمان ولايت د قرغيو ولسوالی د عزيز خان په کڅ کې زيږيدلی دی.<br><br>استاد الفت د لوی او ځانګړي استعداد او ذکاوت خاوند شخصيت و. ده خپل علمي تحصيلات په خصوصي توګه په غير رسمي مدرسو کې پای ته رسولي دي. نوموړې مروجه او متداوله علوم، لکه: فقهي اصول، صرف، نحو، معاني، بديع، بيان، عروض، منطق، حکمت، رياضي، علم کلام، تفسير، حديث، فلسفه او داسې نور يې د لغمان او ننګرهارولايتونوله ممتازو او نامتو استادانو څخه زده کړي.<br><br>استاد الفت د پورتنيو علومو له زده کړئ او شخصي مطالعاتو وروسته په رسمي ډول په دولتي ادارو کې خپلې دندې تر سره کړي دي او دخپل لنډ اوتنګ ژوند په اوږدو کې يې زيات شمير منظوم، منثور او څيړنيز آثار ليکلي دي چې ځينې يې په لاندې ډول دي.<br><br>دپسرلي نغمه، عالي افکار، دآزادې پيغام، دزړه وينا، غوره اشعار، دالفت خبرې، غوره نثرونه، ليکوالي املا او انشا، پښتو سندرې، ادبي بحثونه، ملي قهرمان اوبله ډيوه، څه ليکل يا ليک پوهه، نوی څرک، څه ګورم او څه اورم، بيلابيلې ليکنې او مقالې او داسې نور آثاريې وليکل.<br>دغه لوی شخصيت د ۱۳۵۶ کال د ليندۍ دمياشتې په ۲۸ له دې نړۍ سره مخه ښه وکړه او دلغمان ولايت په کڅ نومي ځای کې دکابل – جلال اباد دلوی سرک په څنګ کې په خپله پلرنۍ هديره کې خاوروته وسپارل شو. |

**درې دیرشم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| **د لوست موضوع** | **صفت** |
|---|---|
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- صفت به وپيژني.<br>- متن به ولوستلای اوولیکلای شي.<br>- په جملوکې به د صفت له کارولو سره مینه پید ا کړي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسيز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | د زده کوونکو پام لوست ته واړوئ اویوه یا دوه انګیزوي پوښتنې ترې کړئ، لکه:<br>تاسو صفت پيژنئ؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- تاسو هم دکلمې په هکله ورته ساده مثالونه ورکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ولاړشي، د صفت یوه کلمه دې ولیکي اوبل زده کوونکی دې نوموړی صفت په جمله کې وکاروي او بل زده کوونکی دې د هغې جملې تیروتنه ونیسي اوسم شکل د ې ولیکي.<br>- اوس دې زده کوونکي په خپلو کتابچو کې۳ داسې جملې ولیکي چې په هغوکې صفت وکارول شي. بیا دې څوتنه نوموړې جملې پرتختې ولیکي اونور دې په کې تیروتنه په نښه کړي اوسمه دې کړي.<br>- یوزده کوونکی دې پورته شي، بل زده کوونکی دې یوه صفت لرونکی جمله ووايي اوبل زده کوونکی دې پرهغې جمله کې صفت وښيي. نور زده کوونکي ورته متوجي کړئ.<br>- زده کوونکي دې لاندې جملې په خپلوکتابچوکې ولیکي او بیا د ې په هغو کې صفت وښيي:<br>الف – دا منې سرې دي.<br>ب – زما سره ګلان خوښيږي.<br>ج– د افغانستان بیرغ تور، سوراو شین رنګونه لري.<br>که وخت و تاسو ورته نور فعالیتونه جوړ او ور باندې کار وکړئ. |

| | |
|---|---|
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له زده کوونکوځخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړي، لکه:<br>- صفت تعریف کړئ. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کور کې داسې ځوجملې ولیکي چې صفت ولري خو چې په کتاب کې نه وي. |
| **اضافي معلومات** | صفت هغې کلمې ته وايي چې يو حالت، کیفیت اوځرنګوالی بیانوي. صفتونه دغه لاندې ډولونه لري.<br>اصلي صفت: د يو نوم ذاتي ښه والی او بد والی ښکاره کوي: لکه ښه سړی، بد سړی.<br>اصلي صفتونه دا دي: زوړ، موړ، لوړ، ښکلی، ګړندی او داسې نور.<br>نسبتي صفت: چې يو بل نوم ته يې نسبت شوی وي. لوګری، کندهاری، احمدخیل، سیلمانخیل او داسې نور.<br>اشاروي صفت: چې يو بل نوم ته یې اشاره وشي، اشاره وي صفت بلل کیږي. هغه د کابل پوهنتون دی، هغه هلکان ښکلي دي، هغه غر دنګ دی.<br>عددي صفت: هغه کلمې دي چې د هغه په وسیله د يو شي د شمیر اندازه معلومیږي، لکه:<br>- دوه هلکان، دوه منې، ځلور کتابونه او داسې نور.<br>استفهامي صفتونه: د پوښتنې په وخت کې کارول کیږي او موصوف ورسره راغلی وي، لکه: څو قلمونه دې پکار دي، ځومره کتابچې اخلې او داسې نور. |

**څلور دیرشم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **معلولینو ته درناوی** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د معلولینو حقوق به و پیژندلای شي.<br>- متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له معلولینوسره به مینه پیدا کړي او د ژوند کولو لارې چارې به ورته و ښودلای شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | - ښوونکی دې له زده کوونکوڅخه څوانګیزوي پوښتنې وکړي، لکه:<br>تاسوکله له معلولوخلکوسره مرسته کړې ده؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته تاسو یوځل متن ورته ولولئ بیا دې زده کوونکی متن ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي. تاسې د هغوی تیروتنې ورته حل کړئ.<br>- یوځل دې متن په چوپه خوله ولولي. بیا دې څوتنه په مناسب آواز په ټولګي کې ولولي.<br>- څوزده کوونکي دې د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي.<br>- څوزده کوونکي دې د هغو کارونوپه هکله خبرې وکړي چې معلولین یې کولای شي.<br>- څوکسه دې له معلولینوسره د همدردۍ په هکله خبرې وکړي.<br>- یو زده کوونکي دې بل زده کوونکي ته دکتاب یو پاراګراف د املا په توګه ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي او بیا دې ولولي. نور زده کوونکي دې د هغه تیروتنه ونیسي.<br>- یو زده کوونکی دې تختې ته ولاړشي. نور زده کوونکي دې دیو یو ولایت نوم ورته ووایي اوهغه دې پرتختې ولیکي اوبیا دې ولولي.<br>یو زده کوونکی دې له بل زده کوونکي څخه د لوست په اړوند پوښتنه وکړي اوهغه بل دې ورته ځواب ورکړي. |

| | |
|---|---|
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکي څخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړي، لکه<br>- معلول چاته ویل کیږي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کور کې د معلولینوپه هکله چې آیا زده کړې کولای شي که نه، څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | معلول هغه چاته وایي چې د طبیعي پېښې په رامنځته کېدو او یا یې په جګړه کې د خپل بدن کوم غړی له فعالیت څخه لویدلی او یاکمزو ری شوی وي او یا د نورو ټولنیزو او سیاسي عواملو له امله ورته زیان رسیدلی وي. موږ ډېرکسان داسې لیدلي دي چې په ښکاره روغ ښکاري خومعلول وي او یا له رواني ستونزو سره مخامخ وي، داټول عصبي، رواني او عقلي نارو غان په معلو لو کې راځي، داټولې ستونزې له زیږیدو وروسته پیداشوي وي، خو یوه بله ډله نارو غان داسې دي چې د هغوی د بدن غړی موجود وي، خو له فعالیت څخه لویدلی وي او یاکمزوری وي او داسې ناروغان په همدې ډول زیږیدلي وي، نو دوی ته معیو ب ویل کیږي . زمو ږ په هېواد کې ډېر نارینه، ښځې او یا ما شو مان د جګړو دبدمرغیو له امله دمعیو بیت او معلولیت سره مخامخ شوي دي او د ژوندانه شپې ورځې په ستونزو سره تیروي.<br>معیوبین اومعلو لین زموږ د ټولنې غړي دي، باید په درنه سترګه ورته ولیدل شي او له هغو سره مرسته وکړو او د هغوی لپاره دکارو بار زمینه برابره کړو، ترڅو په خپلو پښو دریږي.<br>د نړۍ په نورو هېوادو نو کې معیوبینو اومعلو لینو ته په درنه سترګه ګوري ان د دوی لپاره یې په کال کې یوه ورځ ټاکلې اوهرکال هغه ورځ نمانځل کیږي چې د دسمبر دریمه نېټه یې و رته ځانګړې کړي ده. په دې ورځ د دوی د ژوند انه او حقونو په اړه خبرې کیږې او د نړیوالو پام ورته راګرځو ل کیږي.<br>مو ږ په خپل هېواد کې تراوسه پورې دیوې سروې له مخې له ( ۸۰۰۰۰) څخه زیات معیوب لرو او هرکال کابوله (۳۰۰۰) – ( ٤۰۰۰) پورې خلک دماینونو د چاودیدلو له امله معیوبیږي. په (۲۰۰۳) کال کې د ایټالیې د هیواد د یوې سروې له مخې چې دکابل په ( ٦٥) ښوونځیو کې وشوه، دمعیوبیت پېښې (۳۱) فیصده او دجګړو پېښې ( ١٦ فیصده وې . له دې څېړنو څخه څرګندیږي چې زموږ په ټولنه کې د بیلا بیلو عو ملو له امله ترمعلول معیوب زیات دي چې زموږ په خلکوکې د معیو بیت عو امل هم له جګړو اوټو لنیزو ناخو الو څخه رامنځه ته شوي . زموږ ماشومان په معیو ب ډول زیږیږي کا بو( ٥) فیصده ما شو مان معیو ب زیږیږي او یا داچې د ماشوم توب په دوره کې معیو ب کړای شي.<br>ماخذ: سلا متي مجله ځانګړې ګڼه ۱۳۷٤ کال |

## پنځه دیرشم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **بېلابېل خواړه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به بیلابیلو خوړوته اړتیا وپیژندلای شي.<br>- د لوست متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له بیلابیلو خوړو سره به يې مینه زیاته شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څوانګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسوپه اند د بیلابیلو خوړو خوړل روغتیا ته څه ګټه رسوي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- متن دې په چوپه خوله ولولي او بیا دې له متن یوه جمله په خپله خوښه وټاکي او په خپلو کتابچوکې دې ولیکي بیا دې څوکسه په ټولګي کې ولولي.<br>- یوکس دې پورته شي، بل زده کوونکي ته دې یوه جمله دکتاب له مخې ووایي اوهغه دې پرتختې ولیکي. بل زده کوونکی دې د هغه تیروتنه ونیسي اوسم شکل دې ولیکي.<br>- یوزده کوونکی دې له بل زده کوونکي څخه دکتاب د متن په باره کې پوښتنه وکړي اوهغه دې ورته ځواب ورکړي. لکه: میوې وجود ته کوم قوت ورکوي؟<br>- زده کوونکي دې په خپلوکتابچوکې د هغوخوړو نومونه په جملو کې وکاروي چې د هغوخوښیږي.<br>- څو زده کوونکي دې په ټولګي کې د لوست د مفهوم په باره کې خبرې وکړي اونور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکي دې په وار سره پورته شي، لاندې پوښتنو ته دې ځوابونه ورکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- مور په خپلو کورونو کې د خوړو لپاره څه ډول پروګرام تیار کړو؟<br>- میوه د وجود لپاره څه ډول ګټه رسوي، خبرې پرې وکړئ؟ |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>بیلابیل خواړه وجود ته څه ګټه رسوي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د بیلابیلو خوړو د نه خوړلو د زیانونوپه هکله څوکرښې ولیکي. |

**شپږ دیرشم لوست**

**د تدریس لاربنود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **ولسي دودونه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به خپل ولسي دودونه وپيژني.<br>- لوست به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- د لوست په ارزښت به خبرې وکړای شي.<br>- له ولسي مثبتو دودونو سره به یې مینه اوعلاقه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | د زده کوونکو پام لوست ته واړوئ. ورته ووایئ چې په عکس کې څه لیدل کیږي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- متن دې په چوپه خوله ولولي اوستونزمن ځایونه دې په نښه کړي، تاسویې ورته حل کړئ.<br>- زده‌کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي او نور دې د ځوابونو په برخه‌کې خپل نظر څرګند کړي.<br>- څوک به د خپل کلي او سیمې د دودونو نومونه واخلي اوهغه به شرحه‌کړي چې په څه ډول سرته رسیږي.<br>- څو زده‌کوونکې د هغه رواج نوم واخلي چې د دوی خوښیږي. د خوښیدو لامل دې هم ووایي.<br>- څو زده کوونکي دې د لوست د ارزښت په هکله خبرې وکړي .<br>- یو زده کوونکی دې په خپله سیمه کې د ښو دودونو په باره کې خبرې وکړي او نورکه پرې خبرې کول غواړي، کولای شي.<br>که وخت و تاسو ښوونکي هم په زده کوونکو ورته فعالیتونه سرته رسولی شئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- څوک به د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي؟ |
| **کورنۍ دنده** | په کور کې دې د ښو او مثبتو دودونو په هکله څوکرښې ولیکي. |

## اوه دیرشم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **ابن سینا** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به ابن سینا وپیژندلای شي.<br>- د لوست متن به و لوستلای او ولیکلای شي.<br>- له علم او زده کړې سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | لو ست ته د زده کوونکو د پام اړولو په خاطر څوانګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په نظر به ابن سینا څو ک وي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته یو پوه زده کوونکي دې متن ولولي اونور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسې ورسره په لوستلو کې مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې یوځل متن په چوپه خوله ولولي. که په کومه کلمه پوه نه شو، پوښتنه دې وکړي، هغه دې ورته حل کړئ.<br>- زده کوونکي دې په متن کې عام نومونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او په جملوکې دې وکاروي او بیا دې څوتنه په جملو کې کارول شوي کلمې پرتختې ولیکي. بل زده کوونکی دې د هغه تیروتنه ونیسي اوسم شکل دې ولیکي.<br>- زده کوونکی دې له یادو د لوست د موضوع په باره کې خبرې وکړي.<br>- یوزده کوونکي دې پورته شي، له بل زده کوونکي څخه دې د لوست د متن په باره کې پوښتنه وکړي اوهغه دې ورته ځواب ورکړي. تاسو ورته زده کوونکي متوجې کړئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړي، لکه:<br>- ابن سینا دکوم ځای و اوکوم کارونه یې کړي دي. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې دعلم اوپوهې په باره کې څوکرښې ولیکي او په بل درسي ساعت کې دې ښوونکی وګوري. |
| **اضافي معلومات** | ابن سینا بلخی د عبدالله زوی دعلي لمسی او د سینا کړوسی دی. نو موړی په ۳۷۰ قمري کال کې په بلخ کې زیږیدلی دی.<br>دوخت فزیک پوه او فیلسوف و. نوموړی په ابوعلي سینا، ابن سینا او پورسینا باندې هم مشهور دی. د ابوعلي سینا پلار د بلخ اوسیدونکی و، سینا په لس کلنۍ کې قرآن کریم په یادو زده کړ.<br>له ابو عبدالله ناتلي سره یې د منطق، هندسې اونجوم زده کړه وکړه. نوموړی د۱۲کلونو و |

| | |
|---|---|
| چې له خپلې کورنی سره په بخارا کې اوسیده. نوموړي په ځوانی کې حکمت هم زده کړ. نوموړي له یوناني طب سره ډېره مینه درلوده. په ۱۶کلنی کې یې ناروغان تداوي کول. په هغه وخت کې چې د۱۷کلونو و، نوموړي له طبابت سره مینه درلوده. یو وخت دبخارا امیرنوح بن منصور ناروغه شوی و، طبیبان یې راټول کړي وو چې دامیر تداوي و کړي . په هغوکې ابن سینا هم و. نور طبیبان له تداوی څخه پاتي راغلل، یوازې ابن سینا دهغه تداوي وکړای شو، په دې وخت کې د ۱۸کلونو و، امیر ورته وویل: څه غواړې چې درېې کړم.<br>این سینا ورته وویل: ماته اجازه راکړه چې ستا دکتابخانې دکتابونو په مطالعه کولو کې آزاد اوسم.<br>نوموړی لومړی اسلامي عالم دی چې په فلسفه کې کې یې کتابونه لیکلي. نوموړي ۲۳۸ کتابونه لیکلي دي چې ډیر یې په طبابت او فلسفه کې لیکل شوي دي. دقانون اوشفا کتابونه یې ډیرمشهور دي. لومړنی کتاب یې المجموع نومیږي. دابن سینا القانون په طب کې د ومره مشهور دی چې ترډیره په لویدیزو هیوادونوکې ترې کاراخیستل کیده. نوموړي له شعراوشاعری سره هم مینه درلوده، خپل ټول آثار یې په عربي اودري لیکلي دي اوپه دري ژبه یې رباعی هم ویلي دي.<br>ابن سینا په ۴۰۴کال کې ری ته او وروسته په۴۰۵ ق کال کې قزوین ته اوبیا وروسته همدان ته ولاړ.<br>په همدغه ښار کې ناروغه، مړ او خاورو ته وسپارل شو. نوموړي په ۱۸کلنی کې د وخت ټول علوم زده کړل. نوموړي په دري ژبه کې ۲۰ آثار لیکلي دي. په دري ژبه کې ۲۲ قطعه اورباعی لري.<br>ماخذ:<br>- زندگینامه ۱۱۲تن شاعران، نویسندگان ودانشمندان . تالیف مصطفی رحیمي<br>- ویکیپیدیا | |

**اته دیرشم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **اشر (ګډکار)** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به د اشر دود وپیژندلای شي.<br>- د لوست متن به ولوستلا ی او ولیکلای شي.<br>- له یوبل سره به د اشر دکارونو په موخه پوه شي.<br>- له اشر سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | د زده کوونکو پام لوست ته راواړوئ اوانګیزوي پوښتنې ترې وکړئ، لکه:<br>- ستاسوپه فکر اشر څه ته وایي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته یوځو لایقه زده کوونکي دې د لوست متن په مناسب اواز ولولي اونور دې ورته غوږ ونیسي ، تاسویې تیروتنه ونیسئ.<br>- اوس دې زده کوونکي متن په سمه توګه له ځان سره ولولي اوله متن څخه دې هغه جمله به خپله کتابچه کې ولیکي چې دهغه خوښه شوي وي.<br>- څو زده‌کوونکي دې په ټولنه کې د ښو دودونو او رواجونو په هکله خبرې وکړي او ښوونکی دې ورسره د خبرو په بشپړولو کې مرسته وکړي.<br>- څو زده کوونکي دې د اشرد ګټو په هکله خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.<br>- یوزده کوونکی دې ټولګي تختې ولاړشي اوبل زده کوونکی دې ورته له متن څخه څو لغتونه ووایي اوهغه دې په جمله کې و کاروي او بیا دې ولولي. که یې څه تیروتنه وکړه، هغه ورته سمه کړئ.<br>- لاندې کلمې دې په کتابچو کې ولیکي او بیا دې د مرکبو نومونو لاندې کرښه وکاږي.<br>سباوون- ځمکې- کلي- خوښ- ځوانانو- کار- مرسته- اشر<br>- **زده کوونکی دې متن یوځل بیا ولولي. په هغه کې دې مونث نومونه راوباسي اوپه خپلو کتابچو کې په جملو کې وکاروي اوبیا دې څو تنه خپلې لیکل شوي جملې د ټولګیوالو په مخکې ولولي.**<br>- یو زده‌کوونکي دې پرتختې د اشر کلمه ولیکي، نور زده‌کوونکي دې د اشر دګټو په هکله یو یو نظر ووایي او هغه دې پرتختې ولیکي. نور زده‌کوونکي دې د هغه تیروتنې سمې کړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړي، لکه:<br>- په ټولنه کې اشر څه ته وایي؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د اشر په هکله څو کرښې په خپل فکر ولیکي اوبیا دې په ټولګي کې ووایي. |

**نه دیرشم لوست**

**د تدریس لاربنود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **ملګري ملتونه** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به ملګري ملتونه وپیژندلای شي.<br>- د لوست متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- د ملګرو ملتونو له کارونو او اجرااتوسره به يې مينه پيدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکوڅخه انګیزوي پوښتنه وکړئ، لکه:<br>- تاسو د لوست په پیل کې نښان ګورئ، څه فکر کوئ چې دا نښان به دځه شي وي؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته زده کوونکي دې متن ولولي اوتاسو يې تیروتنه هم ونیسئ، نور زده کوونکي لوست ته په غوږ نیولو وهڅوئ.<br>- زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بیا دې څو زده کوونکي د لوست له متن څخه چې څه يې په ذهن کې ناست وي، ودې وایي.<br>- څو زده کوونکي دې ووايي چې یونیسف د نړۍ له هیوادونوسره د ښوونې په برخه څه مرسته کوي؟ خبرې دې پرې وکړي، تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې اوس د دغې لاندې پوښتنې ځواب په خپلو کتابچوکې ولیکي.<br>یونیسف څه فعالیتونه ترسره کوي؟<br>په خپلو کتابچو کې دې ځواب په څو کرښو کې ولیکئ. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکوڅخه د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې و کړي، لکه:<br>- ملګري ملتونه څه ډول سازمان دی؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورونو کې د ملګرو ملتونو په باره کې څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | له دویمې نړیوالې جګړې وروسته، د نړۍ لوی ځواکمن هیوادونه دې پایلې ته ورسیدل چې یوه نړۍ واله ټولنه باید رامنځ ته شي، ترڅو د خونړیو او بربادوونکو جګړو مخنیوی وکړای شي. په دې هلوځلو کې، د ملګرو ملتونو منشور ترتیب او تصویب شو. د ملګرو ملتونو د امنیت شورا له پنځه دایمي غړو جوړه او د ویتو حق يې هم تر لاسه کړ. د ملګرو ملتونو په منشورکې په (۲۴ – ۲۶ )موادوکې د امنیت شورا دندې واضح شوي دي. د امنیت شورا بنسټیزه دنده د نړیوال امنیت او سولې ساتل دي. د ملګرو ملتونو د منشور د لومړۍ مادې پر بنسټ، د ملګرو ملتونو ټولنه د مساوي حقوقو او د خلکو د سرنوشت ټاکنې پر بنسټ د ملتونو ترمنځ دوستانه اړیکې رامنځ ته کوي، نړیوالې اقتصادي، ټولنیزې او بشري ستونزې په همغږۍ سره حلوي، د بشري حقوقو پرمختګ او د انسانانو آزادي او پدې ارزښتونو کې دملتونو همغږي کول هغه موخې او دندې دي چې د ملګرو ملتونو سازمان ورته ژمن دی چې اوس ۱۹۳ هیوادونه دهغه غړیتوب لري اوزموږ هیواد هم ددغه سازمان غړی دی. دملګرو ملتونو دسازمان هر غړي هیواد چې کومه ژمنه کړي وي د خپلې ژمنې په سرته رسولو باندې مکلف دی. |

## څلويښتم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **مترادفې کلمې** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکی به مترادفې کلمې وپيژندلای شي.<br>- دمترادفوکلمولوست به ولوستلای او وليکلای شي.<br>- په جملو کې به مترادفي کلمې وکارولی شي.<br>- په جملو کې به دمترادفوکلموله کارولوسره ليواتيا پيدا کړای شي. |
| **د تدريس لارې** | يو کسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **دتدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انگيزوي پوښتنې** | د زده کوونکو پام نوي لوست ته دځوانگيزوي پوښتنو په کولوسره واړوئ، لکه:<br>- ستاسو په نظر مترادفي کلمې کوموکلمو ته وايي؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته زده کوونکی دې يوځل متن له ځان سره ولولي، بيا دې ځوتنه د ټولگي په مخ کې ووايي. نور زده کوونکي دې خپلو ستونزمنوکلموته متوجي وي چې زده يې شي.<br>- څوزده کوونکي دې د لوست د متن له لوستلو وروسته د مترادفوکلموپه هکله خبرې وکړي.<br>- زده کوونکي دې په خپلو کتابچوکې لاندې څو مترادفي کلمي وليکي اوپه جملوکې دې وکاروي او بيا دې په ټولگي کې ووايي.<br>- د لاندې کلمو مترادفې يا هم معنا کلمې له چوکاټونو څخه پيدا او د کلمو تر څنگه يې په خپلو کتابچو کې وليکئ.<br>ډېر ----------<br>وطن ----------<br>دنده ----------<br>چاپېريال ---------<br>ښکلی ----------<br>هيواد - وظيفه – ښايسته – زيات - شاوخوا<br>- زده کوونکي دې په لاندې جملو کې مترادفي کلمې په نښه کړي:<br>• زه سباته خپل باغ اوبڼ ته ځم.<br>• کار په روغ اوجوړ ځان کيږي.<br>• ما پرون په شين او زرغونه باغ کې لوبې وکړې.<br>- يوزده کوونکی دې تختې ته پورته شي او بل زده کوونکی دې ورته يوه داسې جمله له يادو ووايي چې په هغې کې مترادفه کلمه راغلي وي. نوموړي زده کوونکی دې پرتختې وليکي که يې په ليکلوکې تيروتنه وکړه، بل زده کوونکی دې ورته سمه وليکي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست دزده کړې په هکله پوښتنې وکړي، لکه: د مترادفوکلموځانگړنه وواياست؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د مترادفوکلمو داسې جملې وليکي چې په کتاب کې نه وي راغلي او بيا دې په بل درسي ساعت کې په ټولگي کې ووايي. |

## يو څلويښتم لوست

## د تدريس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **په حيواناتو زړه سوی** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنيزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- د لوست په زده کړه به دحيواناتو ګټې وپيژندلای شي.<br>- لوست به ولوستلای اوويلکلای شي.<br>- دحيواناتوپه ګټو به خبرې وکړای شي.<br>- له حيواناتوسره به يې مينه پيدا شي او زړه سوی به ورسره پيدا کړي. |
| **د تدريس لارې** | يو کسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| **دتدريس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعاليتونه** | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| **انګيزوي پوښتنې** | له زده کوونکوله دې امله انګيزوي پوښتنې وکړئ چې فکر يې لوست ته واوړي، لکه: تاسوکله په حيواناتو زړه سوی کړی دی؟ |
| **د ښوونکي فعاليتونه** | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- اوس دې څوزده کوونکي متن په وار سره ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي. تاسو د ټولګي څارنه وکړئ چې ورته متوجې وي.<br>- يو زده کوونکی دې پورته شي، نورو زده کوونکو ته دې د لوست له مخې څو لغتونه ووايي اوهغو ی دې په جملو کې و کاروي او بيا دې په ټولګي کې ووايي، نور زده کوونکي دې د هغوی تيروتنه ورته ور سمه کړي.<br>- څو زده کوونکي دې د لوست متن ووايي. که څوک څه ستونزه لري، له ښوونکي دې پوښتنه وکړي.<br>- څو زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې په وار سره د لوست د مفهوم په هکله خبرې وکړي اونور دې ورته غوږ ونيسي.<br>- يو زده کوونکی دې تختې ولاړشي، نور زده کوونکي دې په وارسره د حيواناتو دګټو په هکله يوه يوه جمله ووايي او هغه دې پرتختې وليکي اوبيا دې ولولي. که يې تيروتنه کړې وه، بل زده کوونکی دې ورته سمه ېه وليکي.<br>- بيا دې بل زده کوونکی تختې ولاړشي، نور زده کوونکي دې پرحيواناتو باندې د زړه سوي په هکله يوه يوه جمله ووايي اوهغه دې وليکي او بيا دې ولولي که يې په ليکلوکې تيروتنه کړې وه، بل زده کوونکی دې ورته سمه کړي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- له حيواناتو څخه کومې ګټې ترلاسه کولای شو؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې په حيواناتو باندې د زړه سوي په هکله څو کرښې وليکي اوبيا دې په بل درسي ساعت کې ووايي. |

## دوه څلویښتم لوست
## د تدریس لارښود پلان
## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| د لوست موضوع | شیدي پلورونکی |
| --- | --- |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به په دې وپوهيږي چې په شيدوکې اوبه اچول گناه ده.<br>- متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له هغوکارونوڅخه چې گناه لري او دخلکو د تیرایستلو لپاره وي، کرکه به ترې پیدا کړي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **د تدرس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | لوست ته د زده کوونکو دپام اړولو لپاره څوانگیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر په شیدو کې اوبه گډول اویا دخلکو د تیرایستلو لپاره نور دډگې کارونه څنگه کار دی؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته څوزده کوونکي دې متن په مناسب اواز نورو ته ولولي. تاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یوزده کوونکی دې بل زده کوونکي ته د لوست یوجمله داملا په ډول ووایي اوهغه بل زده کوونکی دې پرتختې ولیکي. دریم زده کوونکی دې دهغه تیروتنه ونیسي اوسمه دې ولیکي.<br>- زده کوونکي دمتن ولولي او بیادې دډگې اودخلکودتیرایستلو په ناوړو پایلو خبرې وکړي.<br>- زده‌کوونکي دې متن ولولي. څومفردې کلمې دې له متن څخه ولیکي اوبیا دې په جملوکې وکاروي. څوتنه دې په ټولگي کې ولولي.<br>- یو زده‌کوونکی دې تختې ته ولاړشي، د شیدې کلمه دې پرتختې ولیکي او نور زده‌کوونکي داسې جملې په وار سره ووایي چې په شیدو پورې ارتباط ولري او پرتختې دې ولیکل شي. بیا دې ولولي.<br>- یوزده کوونکی دې دکتاب متن نورو زده کوونکوته ووایي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- شیدي وجود ته څه گټه لري؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې د هغه چا په باره کې څوکرښې ولیکي چې په خپله سوداگرۍ کې خیانت کوي اوتاوان یې کړی وي. |

**درېِ څلویښتم لوست**

**د تدریس لاربښود پلان**

**د تدریس وخت**: **د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| **د لوست موضوع** | **د ښو خبرو اړتیا** |
|---|---|
| **د زده کړې موخې**:<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنيتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- زده کوونکي به دخیانت کارونه وپیژني.<br>- لوست به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>- له ښه کار سره به يې مینه پیدا شي اونور به هم ورته وهڅوي. |
| **د تدریس لارې** | یو کسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انگیزوي پوښتنې** | انگیزوي پوښتنې وکړئ چې زده کوونکي لوست ته ورداخل شي. |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونوروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- یو زده کوونکی دې پورته شي. نورو زده کوونکو ته دې دکتاب له مخې یوه لنده جمله ووایي اوهغوی دې په خپلوکتابچوکې ولیکي. بیا دې څو زده کوونکي خپله جمله پرتختې ولیکي او نور زده کوونکي دې دده تیروتنه ونیسي اوسمه بڼه د ې ولیکي.<br>- څوزده کوونکي دې په وارسره د سوداگرۍ په کارونوکې دخیانت په هکله خبرې وکړي اونور دې ورته غوږ ونیسي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې دشیدو دگټو په هکله څو کرښې ولیکي اوبیا دې په ټولگي کې ووایي. |

## څلور څلویښتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **وچې او تازه مېوې** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- وچې میوې به وپیژندلای شي.<br>- د لوست په لوستلو او لیکلو به توانیږي.<br>- د تازه او وچومیوو له خوړلواودهغوی له ګټوسره به یې علاقه زیاته شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه انګیزوي پوښتنې وکړئ چې نوي لوست ته یې پام وګرځي، لکه:<br>- د نوي لوست په عکس کې څه وینئ؟<br>- ستاسو په فکر د وچومیوو خوراک به څه ګټه ولري؟ |
| **د ښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په څولایقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونیسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- څو زده کوونکي دې د وچو میوو په ګټو خبرې وکړي.<br>- هر زده کوونکی دې د هغې میوې نوم په جمله کې وکاروي چې د هغه خوښیږي، بیا دې په ټولګي کې ووایي.<br>- اوس دې یو زده کوونکی پورته شي، د هغو میوو نومونه دې واخلي چې ددوی په سیمه کې پیدا کیږي.<br>- څو زده کوونکي دې د هغو میوو نومونه واخلي چې زموږ له هیواد څخه بهر نیو هیوادونوته لیږل کیږي.<br>څوزده کوونکي د هغومیوو نومونه واخلي چې له بهرنیو هیوادونو څخه زموږ هیواد ته راوړل کیږي. |
| **د لوست ارزونه** | ښوونکي دې له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله انګیزوي پوښتنې و کړي، لکه:<br>– ستاسوپه نظرمیوې څه ګټې لري؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دهغو میوو نومونه په خپلوکتابچوکې ولیکي چې د دوی په سیمه کې پیدا کیږي. |

**پنځه څلویښتم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| **د لوست موضوع** | **ملي یووالی** |
| **د زده کړې موخې:**<br>**پوهنیزې**<br>**مهارتي**<br>**ذهنیتي** | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- دملي یووالی په اهمیت به وپوهیږي.<br>- د لوست متن به ولوستلای او ولیکلای شي.<br>له ملی یووالي سره به یې مینه پیدا شي. |
| **د تدریس لارې** | یوکسیز، دوه کسیز او ډله ییز، سوال او ځواب |
| **دتدریس مرستندوی توکي** | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشیر، تخته، تخته پاک،کمپیوتر او پروجکتور |
| **مقدماتي فعالیتونه** | مقدماتي فعالیتونه سرته ورسوئ. |
| **انګیزوي پوښتنې** | له زده کوونکو څخه انګیزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ستاسو په فکر ملي یووالی څه ته وایي؟ |
| **دښوونکي فعالیتونه** | - له مقدماتي فعالیتونووروسته په زده کوونکو باندې د لوست متن ولولئ. که ستونزه وه، مرسته ورسره وکړئ.<br>- زده کوونکي دې متن په چوپه خوله له ځان سره ولولي. که څه ستونزه لري، تاسو یې ورته حل کړئ.<br>- یوزده کوونکی دې تختې ته پورته شي، د ملي یووالي نوم دې پرتخته ولیکي. نورزده کوونکي دې یوه یوه جمله د ملي یووالي په باره کې ووایي اوهغه دې پرتختې ولیکي.<br>- یو یا څوزده کوونکي دې دملي یو والي په باره کې خبرې وکړي. نوردې ورته غوږ ونیسي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ، لکه:<br>- ملي یووالی څه ګټه لري؟ |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې دملي یووالي دنه شتون د زیانونو په هکله څوکرښې ولیکي. |
| **اضافي معلومات** | ملي یووالی د هیواد د قومونو اوځوانانو ترمنځ د رښتینې ملي پیوستون معنا لري. څومره چې په یوه هیواد کې دټولو پرتو میشتو قومونو ترمنځ د یووالي روحیه پیاوړې وي، په هماغه اندازه نه یوازې داچې د دوی د خاورې د نیولو دښمنان پرې کامیاب کیدای نشي بلکې دخپل هیواد په دننه کې هم څوک نشي کولای چې دپرتو قومونو ترمنځ دخپلو موخو دسرته رسولو لپاره ترې کار واخلي اوملي یووالی له منځه یوسي. |

| | |
|---|---|
| که موږ دخپل تاریخ پاڼې راواړو دابه راته څرګنده شي چې زموږ په هیواد باندې دېردیو برید ګرو له خوا ډېر بریدونه شوي دي، خو داچې پرتو قومونو په خپل منځ کې پوره یووالي درلوده، په یوه غږ پورته شوي دي اوپه پوره میړانه یې دخپل هیواد ساتنه کړې ده.<br>موږ په خپل ویاړلي تاریخ کې د هیوا له بیلابیلوسیمو څخه اتلان اوغازیان لرو چې د ولسونو په یووالي سره یې دخپلواکی بیرغ رپاند ساتلی دی.<br>په یووالی او اتفاق کې وروري پرته ده . خدای (ج) هم د انسانانو په یووالي اووروری باندې خوښیږي او داکار زموږ شرعي وجیبه هم ده. یووالي هم زموږ د دین له پلوه اوهم په یوه ټولنه کې د ټولنیز نظم د رامنځته کولو لپاره اړین دی چې په درنښت سره ورته وکتل شي.<br>چیرې چې یووالی اواتفاق نه وي، هلته به دښمني وي، یوبل ته به کندې کني او د ژوند ښیرازه به یې له منځه ځي او د هیواد دښمنان به شومي موخې عملي کوي.<br>کله چې په یوه ټولنه کې دیو والي اواتقاق روحیه له منځه ځي، هلته دېردیو لاسونو لاسوهنه رامنځته کیږي اوپه هغې ټولنه کې داتفاق روحیه کمیږی اوپه خپلو کې دیو بل وینو ته تږې کیږي.<br>زموږ د ګران هیواد ټولو قومونو او ولسونو تل د تاریخ په اوږدو کې د ملي یو والي او ورور ولی په سپېڅلې سمبالې روحیې ژوند کړی دی. تر څو چې داهیواد وي، ژوند به کوي. کوم وګړي چې په دې هیو اد کې ژوند کوي، ټول افغانان دي او افغانان تل دملي یوالي او ورورو لی سره مینه لري او په دغه وروروليی او یووالي باندې ویاړي . په دغه ملي یووالي سره کیدای شي زموږ د هیواد ټولې ملي شتمنی خو ندي اوهم په خپلو کې د ورورۍ فضا ساتلی شو.<br>درانه ښوونکي باید زده کوونکوته دملي یووالي په برخه خبرې وکړې اوپه زده کوونکوکې دیووالي روحیه رامنځته کړي چې وکړای شي هیواد په ګډه دعلم اوپوهې پواسطه اباد اوسمسور کړای شي اوپه امن کې یې وساتي. | |

## شپږڅلويښتم لوست
## د تدريس لارښود پلان
## د تدريس وخت: د اونۍ درې درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| د لوست موضوع | ساده او مرکبې کلمې |
| د زده کړې موخې:<br>پوهنيزې<br>مهارتي<br>ذهنيتي | زده کو ونکي به ددې لوست په زده کړه سره لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>- په متن کې به ساده اومرکبې کلمې وپيژني.<br>- متن به ولوستلای او وليکلای شي.<br>د ساده او مرکبو کلمو له ليکلو سره به يې مينه پيدا شي او په ليکلوکې به ترې کارواخلي. |
| د تدريس لارې | يوکسيز، دوه کسيز او ډله ييز، سوال او ځواب |
| دتدريس مرستندوی توکي | کتاب،کتابچه، قلم، پنسل، تباشير، تخته، تخته پاک،کمپيوتر او پروجکتور |
| مقدماتي فعاليتونه | مقدماتي فعاليتونه سرته ورسوئ. |
| انګيزوي پوښتنې | له زده کوونکو انګيزوي پوښتنې وکړئ، لکه:<br>ستاسوپه فکر مرکبې اوساده کلمې به څه ډول وي؟ |
| د ښوونکي فعاليتونه | - له مقدماتي فعاليتونووروسته په څولايقو زده کوونکو باندې نوی متن ولولئ او نور دې ورته غوږ ونيسي اوتاسو ورسره مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکي دې متن په ټولګي کې ولولي اوتاسو ورسره په لوستلو کې مرسته وکړئ.<br>- يوزده کوونکي دې دکتاب له مخې ساده اومرکبې کلمې بل زده کوونکي ته ووايي اوهغه دې پرتختې وليکي. يويو زده کوونکی دې تختې ته راشي اوپه جمله کې دې وکاروي.<br>- زده کوونکي په دوو ډلو وويشئ. يوه ډله دې له کتاب څخه ساده کلمې وليکي اوپه جملوکې دې وکاروي اوبله ډله دې مرکبې کلمې وليکي اوپه جملو کې وکاروي. بيا دې دهرې ډلې استازی خپله ليکنه د ټولګي په مخکې ولولي اونور زده کوونکي دې ورباندې خبرې وکړي.<br>- يوزده کوونکی دې لاندې جملې بل ته ولولي اوبل زده کوونکی دې پرتختې وليکي اوپه هغې کې دې ساده يا مرکبه کلمه به ګوته کړي.<br>۱- د مزار شريف پوهنتون يو ښکلی کتابتون لري. ۲- سپين بولدک د کندهار په ولايت کې دی.<br>۳- په جلال اباد کې د نارنجو ونې ډېرې دي. ٤- زما ورور په نوی ښار کې اوسيږي.<br>٥- د حبيب کور په ګلخانه کې دی. ٦- پرهار پانه د يو بوټي نوم دی.<br>- په پورتنيو جملو کې (مزار شريف، سپين بولدک، جلال آباد، نوی ښار) ګلخانه او |

| | |
|---|---|
| | پرهار پاڼه) مرکبې کلمې دي. |
| **د لوست ارزونه** | له زده کوونکو د لوست د زده کړې په هکله پوښتنې وکړئ لکه:<br>- ساده اومرکبې کلمې تعریف کړئ. |
| **کورنۍ دنده** | زده کوونکي دې په کورکې داسې جملې له ځانه ولیکي چې په هغوکې ساده اومرکبې کلمې راغلي وي اوترې لاندې کرښه کش کړي. |

پای